د کتاب ځانګړنې:

|||||||||||||||||||||||||||||||||||||||

د کتـاب نـوم : (تعليم الاسلام ) ديني ښوونې

ليـــکــــــــوال : مفتي كفايت الله رحمه الله

ژبــــــــــاړه : حبيب الله قاسمي

کـــــمـــــپــــوز : محمدابراهيم نبيل

دچـــاپ کـــال : 1383 ل تله، 2004 ستمبر

دچـــاپ ځـــای : لاهور – پاکستان

خــپــروونــکــي : نفيس علمي ټولنه اکوړه خټك دارالعلوم حقانيې ته مخامخ دسيد احمدشهيد مکتبي ترخنګ

تليفون : 0092-3335199088 _ 0092-3005778253

دمــونــدلــو درکــونــه:

پيښور: سرحد بك ايجنسي خيبربازار، دانش کتابخانه ډهکي نعلبندي ، مکتبه روضۍ القرآن ، مکتبه رشيديه ، قصه خوانی ، مکتبه سيداحمد شهيد اکوړه خټك.

## ډالۍ:

دخپل ځورېدلي او نيمه خوا اولس هغو كمكيانو ته!

چې زياتره يې له ليك لوست بې برخې دي او برخمن يې بيا له ديني ښوونو محروم دي.

# د خپرندو يې ټولنې ياد ښت

مورږ له وړکتوبه خپلو کمکيانو ته داخبره ورزده کوو چې : داسلام بناوې ( ارکان ) پنځه دي ، ستاسې په لاس کې کتاب په همدې هکله څه دپاسه (670) پوښتنې په ډيره ساده اوداسې روانه ژبه ځوابوي چې راښکون لري او ديني پوهه تاندوي.

په اوس وخت کې زمونږ دکمکيانو اوځوانانو له ديني ښوونو ناخبري اوله هغو سره لاپروايي پټه خبر نه ده ، ځکه خو دامهال ددغه ډېر کتابونو لوستل ، کمکيانو اوځوانانوته ترپخوازيات اړين اوارزښتمن ښکاري.

کوچنيانواولويانوته دزده کړې اولوست لپاره دپښتو داوسني ليکدود له معيارسره سم دديني کتابونو برابرول دنفيس علمي ټولنې (چې يوه آزاده، ناپيلې، اسلامي، علمي اوفرهنگي ټولنه ده) ترټولو ستره هيله ده، بلکې دهمدې موخې دلاسته راوړلو په مقصديې دبنسټ ډبره ايښودل شوې ، زمونږ هيله له ميندو، پلرونو اومشرانو څخه داده چې داکتاب پر خپلو کمکيانو نه يواځې ولولي بلکې داملا په ډول يې پرې هم وليکي، ځويې له يوه پلوه املا زده شوي وي اوله بل لوري به يې دکتاب ديني مسئلې په ذهن کې دژوند ترپايه ناستې وي، همداهيله مو دافغاني مکتبونو اوليسوله مشرانو څخه هم ده چې نومورې کتاب په خپل نصاب کې داخل کړي.

ټولنه له تاسې سره ژمنه کوي چې په نږدې راتلونکي کې به ( که خداى کول ) ددې لړۍ يو بل کتاب د (ديني ښوونه) په نامه چې څو تنو افغاني علماوو دوه لسيزې دمخه په گډه دسږو اوميرمنو لپاره ليکلی اودعقايدو، عباداتو اواخلاقو درى بيلابيلې گټورې برخې لري له نويو زياتونو اوسمونو سره يو ځاى خپورکړي.

ديادولو وړ ده چې ټولنې دغه ډېر دنوروگټورو کتابونو دژباړې ترڅنگ د ( معارف القران ) تفسير په ژباړه هم لاس پورې کړی ، اوس نوداهرڅه په تاسې کيږي چې څومره په خپلو لورينو، رغوونکو لارښوونو دټولنې کارونه تاند اوچټك ساتئ، په تلو تلو کې له ټولو هغودوستانو اوملگرومننه کوو چې ددې کتاب په بشپړولو اوخپراوي کې يې راسره زيار ايستلی، په ځانگړې توگه دسعودي عربستان له مسافرورور الحاج عبدالحنان نه يو جهان مننه کوو چې ددې کتاب دخپرولولپاره يې ټولنې ته په ورين تندي پور ورکړ.

سوکاله اونيکمرغه اوسئ!

دنفيس علمي ټولنې له خوا

## زیری

تعلیم الاسلام یا (دیني ښوونې ) دمولانا مفتي کفایت الله صاحب هغه اثردی چې دهند په نیمه وچه او ورته څېرمه پرتو نورو هیوادو پاکستان اوافغانستان کې یې شهرت ترهرچارسیدلی ، اوس دپښتو ژبې ته په نوې بڼه ژباړل شوی ،دنفیس خپروندویه علمي ټولنې له خوا خپورشوی

کتاب په عام ډول هرچاته اوپه خاص ډول نوي ځوان کول ته ډیرګټور دی چې په ډیر ساده او روان انداز کې دژوند په هره برخه کې ټول ضروري احکام دسوال اوځواب په بڼه له ځان سره لري ، دغو ارزښتونو ته په پام سره میندو اوپلرونو ته ښایي چې ددیني مسؤلیت له مخې یې پرخپلو اولادونو هلکانو اوانجونو دلوستلو ګټورې پایلې اونېکمرغه راتلونکې ولوروي .

( دیني ښوونې ) له پورته ښېګڼو سره سره له نني مروج اوښکلي صحافت څخه هم بې برخې نه دی . چې ترډیره حده دپښتو لیکدود په معیاربرابردی.

یو نامتو هندی لیکوال ددې کتاب دارزښت په اړه لیکي

آه ..! په رښتیاهم خدایه ! موږ درته ګرم یو اولادونه او تنکی ځوان نسل مودخپلې لاپروایي له امله له دیني ښوونوبې برخې اوناخبره دی، په رڼو سترګو یې وینو چې ورځ تربلې د خپل خواږه پیغمبر ﷺله لارې سره نابلده کیږي اوپه نورو لاروسردي اودتعجب ځای خودادی چې لاهم دډیروپلرونو، میندو اومشرانو سرددیني ښونوپه ارزښت اواړتیا خلاص نه دی.

خوږومیندو! پلرونو! اومشرانو!.....که چیرته نن هم دخپلو اولادونو ددیني روزنې غم ونه خورو بیابه یې کله او څه وخت خورو ؟ .... راځئ ګرانو ! .... خپل کمکی ځوان نسل ستاسې په لاس کې کتاب په لوستلوددین له ضروري احکامو خبر کړو اوکه چیرته ددې کتاب یوه یوه کرښه پرې داملاپه ډول ولیکئ یو خو به یې املا زده شي له بلې خوا به یې ددې کتاب هره مسئله دژوند ترپایه په ذهن کې ناسته وي اودتجربې خبره ده چې ددغه ډول بزرګانو په لاس کښلي کتابونه که چیرته په مـاشومانو و لـوستل شي په آینــده کې یې له دیني بې لارۍ ( انحراف ) ژغوري ....."

# لومړی برخه

بســــم الله الرحـــــمن الــــــرحـــيم

نحمدالله العلی العظیم ونصلي علی رسوله الکریم:

پـوښـتــــنه :ته څوك يې ؟

ځــــواب :مسلمان.

پـوښـتــــنه :د مسلمانانو د مذهب (دين) نوم څه دی ؟

ځــــواب :اسلام.

پـوښـتــــنه :اسلام څه ښونه کوي ؟

ځــــواب :اسلام داښوونه کوي چې : خدای تعالی یودی دبندګۍ لايق يواځې هغه دی ، حضرت محمد  دالله تعالی بنده او رسول دی، قران کریم دخدای تعالی کتاب دی، اسلام رښتینی دین دی،د دنیا او اخرت ټولې ښېګنې اونېکې خبر ي اسلام ښايي.

پـوښـتــــنه : داسلام کلمه کومه ده ؟

ځــــواب :داسلام کلمه داده :

لااِلـهَ اِلااللهُ مـُحَمّـَدٌ رَّسُولُ اللهِ

ژباړه : له خدای تعالی نه پرته بل دعبادت وړ (معبود) نشته محمددالله  رسو ل دی ، دې کلمې ته کلمه طیبه اوکلمه توحید وايي .

پـوښـتــــنه :دشهادت کلمه کومه ده ؟

ځــــواب : دشهادت کلمه داده :

اَشهـَدُ اَنَ لا الـهَ الا اللهُ وَحـدَهُ لاشَـرِيكَ لَـهُ وَاَشهـَدُ اَنَ مُـحَـمَّداًعَـبدُه و رَسُولـُه

زه شاهدي ورکوم چې داللهنه پرته بل خدای دعبادت وړ نشته هغه یو دی سیال نه لري، اوداشاهدي ورکوم چې محمد  يي بنده او رسول دی.

پـوښـتــــنه :ایمان مجمل کوم دی ؟

ځــــواب :ايمان مجمل دادی :

امـنتُ بـالله كـماهو باسـمائـه وصفاته، وقبلتُ جـميع احكامه

ايمان مې راوړی (باور اويقين مې کړی) پرالله باندې لکه څرنگه چې خدای تعالی هغسې دی اود هغه په هغه نومونواو صفتونو باندې مې ايمان راوړی ، اوما يې ټول حکمونه منلي دي.

پـوښـتـــنه :ايمان مفصل کوم دی ؟

ځــــواب :ايمان مفصل دادي :

اٰمَـنـتُ بِـاللهِ وَمَلائكتـهِ وَكُتُبِهِ وَرَسُولِـهِ وَالـيَومِ الاَخِـرِ وَالقَـدرَ خَـيرِهِ وَشَرِهِ مِـنَ اللهِ تَعـالى وَالبَعثِ بَعدِ الـمَوت

ايمان مې راوړی پرالله ﷻ باندې پرملائکوېې، اوپرکتابونوېې او د هغه پررسولانو، دقيامت پر ورځې او په دې چې دښه اوبد تقدير دالله تعا لی له لوري دی، او له مرگ وروسته پرژوندي کېدو باندې .

پـوښـتـــنه :تاسې چا پيداکړي يئْ ؟

ځــــواب :موږ، زمونږ موراوپلار، اسمانونه، ځمکې او ټول مخلوق خدای تعالی پيداکړي .

پـوښـتـــنه :خدای تعالىدنيا له څه شي نه پيداکړه ؟

ځــــواب :په خپل قدرت اوحکم سره يې پيداکړې ده.

پـوښـتـــنه :کـوم خلك چې الله تعالی نه مني هغوی ته څه وا يي ؟

ځــــواب : هــغوی ته کافران وايي .

پـوښـتـــنه :کوم خلك چې له الله تعالی نه پرته دنـورو شيانو عبادت کوي اويادوه دری خدايان مني هغوی ته څه وايي؟

ځــــواب :داسي خلکوته مشرکان او کافران وايي .

پـوښـتـــنه : مشرك ببنل کيږي اوکه نه ؟

ځــــواب :نه ! مشرك نه ببښل کـيږي ، هغه به تل ترتله په تکليف او عذاب کې وي .

پـوښـتــنه:حضرت محمد ﷺ څوك وْ ؟

ځــــواب :حضرت محمد ﷺ دالله تعالی بنده ،دهغه رسول اوپيغمبر وْ مونږ يې امتيان يو .

پـوښـتـــنه :زمونږ پيغمبر چيرې پيداشوی وْ ؟

ځـــــواب :دعربو په وطن کي دمکې معظمې يو ښار دي، په هغه کې پيداشوی وْ .

پـوښـتـــنه :دده مبارك دپلاراونيکه نومونه څه وه؟

ځـــــواب : دپلار نوم يې عبدالله او دنيکه نوم يې عبدالمطلب وْ .

پـوښـتـــنه :زمونږ پيغمبر درتبې له لحاظه له نوروپيغمبرانولوی اوکه وړوکی دي ؟

ځـــــواب :زمونږ پيغمبر په رتبه کې ترټولو پيغمبرانو ستر اود الله تعالی له ټول مخلوق نه لوی دي .

پـوښـتـــنه :حضرت محمد عمر چيرې تېرکړی وْ ؟

ځـــــواب :تردرې پنځوسو (53) کالوپورې په خپل ښار، مکه معظمه کې واوسيده اوله هغه وروسته دالله تعالی له حکم سره سم مدينې منورې ته ولاړ ،لس (10) کاله يې هلته تېر کړل او د درشپيتو (63) کالو په عمر له دنيا څخه ولاړ .

پـوښـتـــنه :که چيرې يو څوك حضرت محمد نه مني هغه څرنګه دی ؟

ځـــــواب :څوك چې حضرت محمد دخداتعالی رسول نه بولي

هغه هم کافردی .

پـوښـتـــنه :دحضرت محمد دمنلو مطلب څه دی ؟

ځـــــواب :دحضرت محمد دمنلو مطلب دادی چې : سړی په دې يقين وکړي چې هغه دخدای تعالی راليږل شوی پيغمبر دی اوپه دې يې عقيده وي چې دی مبارك له خدای تعالی نه وروسته ترټول مخلوق غوره دداووده سره مينه ولري، دحکمونو پيروي يې وکړي

پـوښـتـــنه :داڅرنګه معلومه شوه چې حضرت محمد دخدای تعالی پيغمبردی ؟

ځـــــواب : داسي ښه ښه کارونه يې وکړل، اوداسي خبري يې خلکوته وښودلې چې له پيغمبرپرته يې نه بل څوك ښوولای شي ، اونه يې کولای شي.

پـوښـتـــنه : داڅرنګه معلومه شوه چې قران کريم دخدای تعالی کتاب دی ؟

ځـــــواب :حضرت محمد فرمايلي دي چې قران کريم د الله تعالی کتاب دی او پر ما باندې يې نازل کړی .

پـوښـتـــنه : قرانکريم پر پيغمبر په يوه واراو که لږ لږ نازل شوی ؟

ځـــــواب : هوا! ليږليږنازل شوی، کله يوايت، کله دوه،کله څلور آيّاتونه اوکله هم بشپړسورت، څومره به چې ورته ضرورت وْ هغومره به نازلېده .

پـوښتـــــنه : په څومره وخت کي ټول قران کريم نازل شو.؟

ځـــــواب :په درويشت (23) کاله کې.

پـوښتـــــنه :قران کريم څه ډول نازليده ؟

ځـــــواب :حضرت جبرائيل ؑ به راغی ده مبارك ته به يي آيّت يا سورت تيراوه، ده مبارك به اوريده، يا داوه به يي ليکونکی به يې راوغوښت په هغه به يې وليکه .

پـوښتـــــنه :ده مبارك خپله ولي نه ليکه ؟

ځـــــواب :ځکه چې دی مبارك " اُمي" وْ.

پـوښتـــــنه : امي چاته وايي ؟

ځـــــواب :دچا چي ليك لوست زده نه وي هغه ته " امي " وايي که څه هم پيغمبر ﷺ په دنيا کي دچا څخه علم زده کړي نه وْ خو بيا هم خدای تعالی ده مبارك ته ترټول مخلوق نه زيات علم ورکړي وْ .

پـوښتـــــنه : حضرت جبرائيل څوك وْ ؟

ځـــــواب : ملائيکه ده،پيغمبرانوته به يې دالله تعالی حکمونه راوړل .

پـوښتـــــنه :مسلمانان دالله تعالی بندګي څرنګه کوي ؟

ځـــــواب :1ــ لمونځ کوي 2ــ روژه نيسې 3ــزکات ورکوي 4ــحج کوي .

پـوښتـــــنه :لمونځ څه ته وايي ؟

ځـــــواب :لمونځ دالله تعالی دعبادت او بندګۍ يوه خاصه طريقه ده چې الله تعالی په قران کريم کې او رسول الله ﷺ په حديثونوکې مسلمانانوته ښودلې ده.

.پـوښتـــــنه :دبندګۍ هغه طريقه څه ډول ده کومې ته چې لمونځ وايي ؟

ځـــــواب :په کور يا په جومات (مسجد) کې خلك دالله تعالی په وړاندې لاس په نامه درېږي قران شريف وايي دالله تعالی ستاينه کوي، دهغه لويي اوتعظيم بيانوي، اودهغه په وړاندې ټيټيږي ،سر په ځمکه ږدي، دهغه لويي او خپله عاجزي ښکاروي .

پـوښتـــنه : خدای تعالی لمونځ کونکی په جومات کې ښه ویني اوکه په کورکې ؟

ځـــــواب :خدای تعالی ته لمونځ کونکی هر ځای ويني،په جومات کې وې اوکه په کورکې ، خو په جومات کې لمونځ کول ډېر زيات ثواب لري.

پـوښتـــنه :له لمانځه مخکې چې خلك مخ لاسونه اوپښې مينځي هغه ته څه وايي ؟

ځـــــواب :هغه ته اودس وايي له اوداسه پرته لمونځ نه کيږي .

پـوښتـــنه :په لمانځه کې کوم لورته مخ کول پکاردي ؟

ځـــــواب :لويديز لور ته (کومې خواته چې لمر لويږي).

پـوښتـــنه : ولې په لمانځه کې دلويديزلورته مخ ګرځوو؟

ځـــــواب :دمکې معظمې په ښار کې دخدای تعالی کور چې کعبه یې بولې هغې ته مخ ګرځول ضروري دي ( هغه زموږ دښار "دهلي" لويديز لورته ده)؛ ځکه خوخلك دلته دلويديځ لورته لمونځ کوي.

پـوښتـــنه :په لمانځه کې چې خلك کوم لورته دريږي هغه ته څه وايي؟

ځـــــواب : قبله ورته وايي .

پـوښتـــنه :په شپه او ورځ کې څو واره لمونځ کيږي ؟

ځـــــواب :په شپه اوورځ کې پنځه وخته لمونځ فرض دی .

پـوښتـــنه :هغه پنځه وختونه کوم دي ؟

ځـــــواب:

_1دسهار(فجر) لمونځ چې دسهار په وخت له لمرختومخکې کيږي.

_2دماسپښين (ظهر)لمونځ: چې دزوال (دسيوري له له ماتېدو ) نه وروسته کيږي .

_3دمازديګر(عصر) لمونځ: چې له لمر لويدو يو نيم يا دوه ساعته مخکې کيږي .

_4دماښام (مغرب)لمونځ: چې تر لمر لويدو وروسته کيږي.

_5دماخستن (عشاء)لمونځ: چې له لمر لوېدو يونيم يا دوه ساعته وروسته کيږي.

پـوښتـــنه :آذان څه ته وايي ؟

ځــــــواب :کله چې دلمانځه وخت راشي له لمانځه لږ مخکې يو سړي دربړي په زوره زوره داتوري وايي:

اللهُ اَکبـر اَللهُ اَکبـَر

خدای ډېرلوی دی خدای ډېرلوی دی

اَللهُ اَکبـَر اَللهُ اَکبـَر

خدای ډېر لوی ده خدای ډېرلوی دی

اَشـهَـدُ اَنَّ لاّ اِلـَه اِلاّالله

شاهدي ورکوم چې دالله Y نه پرته بل هيڅ يو معبود نشته.

اَشـهَـدُ اَنَّ لاّ اِلــَهَ اِلاّاللهُ

شاهدي ورکوم چې دالله Y نه پرته بل هيڅ يو معبود نشته.

اَشهَـدُ اَنَّ مـُحـَمـَّد رَسُـولُ الله

شاهدي ورکوم چې محمد eدالله Yرسول دی

اَشهَـدُ اَنَّ مـُحـَمـَّد رَسُـولُ الله

زه شاهدي ورکوم چې محمد eدالله Yرسول دی

حَـيّ عَـلىالصَّـلاىِ حَـيّ عَلَى الصَّلاىِ

لمانځه ته راشئْ لمانځه ته راشئْ

حَـيّ عَلَـى الـفَلاح حَـيّ عَلَى الفَلاح

کاميابي ته راشئْ کاميابي ته راشئْ

اَلله اَکبـَر اللهُ اَکبـَر

خدای ډېر لوی دی خدای ډېر لوی دی

لااِلـــه الاّ الله

دالله نه پرته هيڅګوك دعبادت لايق نشته

دي الفاظو ته اذان وايي.

دسهار په اّذان کې د حيّ على الفلاح نه وروسته الصلاۍ خير مّن النّوم (لمونځ له خوبه ښه دي) ويل کيږي.

پـوښـتـــنه :تکبير (اقامت) څه ته وايي ؟

ځـــــواب :کله چې لمانځه ته خلك دريږي نو دلمانځه له پيل کيدو مخکې يو سړي هاغه کلمې وايي کومې چې په اذان کې ويل کيږي، همدې ته اقامت اوتکبير وايي.

خوپه اقامت کې له حيّ عَلَى الفَلاح وروسته قـدقامت الصّـلاۍ وه واري داذان کلمو زياتې ويل کيږي.

پـوښـتـــنه :څوك چې اّذان يا تکبير وايي هغه ته څه وايي ؟

ځـــــواب :څوك چې اّذان کوي هغه ته " موْذن" (اذان کونکی) اوڅوك چې تکبير وايي هغه ته " مکبر " (تکبيرويونکی)وايي.

پـوښـتـــنه :ډيرخلك چې په ګډه لمونځ کوي لمونځ ورکونکي ،لمونځ کوونکو اوهماغه لمانځه ته څه وايي ؟

ځـــــواب :کله چې ډيرخلك په ګډه لمونځ کوي هغه لمانځه ته دجمعې (جماعت) لمونځ وايي، لمونځ ور کوونکي ته امام اولمونځ کوونکو ته مقتديان وايي.

پـوښـتـــنه :څوك چې يواځې لمونځ کوي هغه ته څه وايي ؟

ځـــــواب :يواځې لمونځ کوونکي ته (منفرِد) وايي.

پـوښـتـــنه :داسې ځای ته چې خاص دلمانځه لپاره جوړوي اوخلك پکې لمونځ کوي څه بلل کيږي ؟

ځـــــواب :هغه ته جومات (مسجد) وايي.

پـوښـتـــنه :څوك چې جومات ته لاړ شي هلته بايدڅه وکړي ؟

ځـــــواب :په جومات کې دې لمونځ وکړي، قراّن شريف دې ووايي، يا دې يوه بل ذکر وکړي اويادې په ادب سره غلی کېني، په مسجد کې لوبې ، ټوپونه ، شور ، اوددنيا خبرې کول بد کاردی.

پـوښـتـــنه :لمونځ څه ګټې لري ؟

ځـــــواب : لمونځ ډيرې ګټې لري يو څو يې تاسو ته درښايو:

_1دلمونځ کونکي انسان بدن او کالي تل پاك او صاف وي.

_2له لمونځ کونکي څخه خدای تعالی خوښ او خوشحاله وي.

_3دلمونځ کونکي څخه حضرت محمد eهم خوښ اوخوشحاله وي.

_4لمونځ کونکي دخدای تعالی په نزد ښه وي.

_5دلمونځ کونکي سړي عزت خلك په دنيا كې هم كوي.

_6لمونځ کونکی له ډيرو ګناهونو ساتلی وي.

_7لمونځ کونکی انسان خدای تعالی له مرګ وروسته په راحت کې کوي.

پـوښـتـــنه :په لمانځه کې چې کوم کلمات ويل کيږي ، د هغو نومونه اوهغه کلمات څه دي ؟

ځـــــواب :په لمانځه کې چې کوم کلمات ويل کيږي د هغو ټولو نومونه او الفاظ دادي :

تكبير

الله اكـبـر

خدای ډير لوی دی.

ثـنـــاء

سُبحَانَـكَ اللـّهُمَ وَبِحـَمدِكَ وَتَبـارَكَ اسـمُكَ وَ تـعَالَى جَـدُّكَ وَلاَ الـهَ غَـيـرُكَ

ژباړه : ای الله ! ستاينه او ثنا يواځې ستاله پاره ده اونوم دې مبارك دی ، شان دې لوړ دی او پرته له تا بل معبود نشته.

تعـــــوذ

اَعُـوذُ بِالله مِـنَ الّشَّيـطَانِ الرَّجيـم

ژباړه : زه خدای ته پناه وروړم چې له رټلي شيطانه مې وژغوري.

تــســـميـه

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

ژباړه : دهغه خدای په نامه شروع کوم چې لورونکی اومهربانه دی.

ســـورت فـاتحـــه

ٱلْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ ٱلْعَٰلَمِينَ ﴿٢﴾ ٱلرَّحْمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ ﴿٣﴾
مَٰلِكِ يَوْمِ ٱلدِّينِ ﴿٤﴾ إِيَّاكَ نَعْبُدُ وَإِيَّاكَ نَسْتَعِينُ
﴿٥﴾ ٱهْدِنَا ٱلصِّرَٰطَ ٱلْمُسْتَقِيمَ ﴿٦﴾ صِرَٰطَ ٱلَّذِينَ
أَنْعَمْتَ عَلَيْهِمْ غَيْرِ ٱلْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ
وَلَا ٱلضَّآلِّينَ ﴿٧﴾

ژباړه :دټول عالم رب او پالونكي ته ثناده چي لورونكى اومهربانه دى ، دقيامت دورځې خاوند دى .

خدايه! يواځې ستا عبادت كوو اويواځې له تانه مرسته غواړو ، موږ ته نيغه(سمه)لار راوښيه، دهغولارچې تاپرې نعمتونه لورولي دي ، نه دهغو لارچې ته ورته قهرېدلى يې ، اونه هم دبېلارو خلكو لار.

سورت كوثر

إِنَّآ أَعْطَيْنَٰكَ ٱلْكَوْثَرَ ﴿١﴾ فَصَلِّ لِرَبِّكَ وَٱنْحَرْ ﴿٢﴾
إِنَّ شَانِئَكَ هُوَ ٱلْأَبْتَرُ ﴿٣﴾

اى پيغمبره ! له شكه پرته مو كوثر(حوض) دركړى، خپل خدائته لمونځ اوقرباني كوه ، ستا دښمن بې نومه اوبې نښانه دى .

سورت اخلاص

قُلْ هُوَ ٱللَّهُ أَحَدٌ ﴿١﴾ ٱللَّهُ ٱلصَّمَدُ ﴿٢﴾ لَمْ يَلِدْ
وَلَمْ يُولَدْ ﴿٣﴾ وَلَمْ يَكُن لَّهُۥ كُفُوًا أَحَدٌ ﴿٤﴾

ژباړه :اى پيغمبره! دوى ته ووايه چي خداى يو دى ، خداى بې نيازه دى ، نه له ده څخه څوك پيداشوي اونه دى له چا څخه پيداشوى ، اونه يې څوك سيال شته.

سورت فلق

قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ ٱلْفَلَقِ ﴿١﴾ مِن شَرِّ مَا خَلَقَ ﴿٢﴾ وَمِن
شَرِّ غَاسِقٍ إِذَا وَقَبَ ﴿٣﴾ وَمِن شَرِّ ٱلنَّفَّٰثَٰتِ فِى
ٱلْعُقَدِ ﴿٤﴾ وَمِن شَرِّ حَاسِدٍ إِذَا حَسَدَ ﴿٥﴾

ژباړه : ای پیغمبره ! په دعاء کې داسې ووایه : چې زه پناه غواړم په رب دسباځیرونکي ، له شره د مخلوق، اوله شره د تیارې شپې چې تکه توره شي اوله شره د پوکي کوونکو ساحرانو ښځو چې پوکول کوي په غوټو کې.

سورت الناس

قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ ٱلنَّاسِ ﴿١﴾ مَلِكِ ٱلنَّاسِ ﴿٢﴾ إِلَٰهِ
ٱلنَّاسِ ﴿٣﴾ مِن شَرِّ ٱلْوَسْوَاسِ ٱلْخَنَّاسِ ﴿٤﴾ ٱلَّذِى
يُوَسْوِسُ فِى صُدُورِ ٱلنَّاسِ ﴿٥﴾
مِنَ ٱلْجِنَّةِ وَٱلنَّاسِ ﴿٦﴾

ژباړه : ای پیغمبره !په دعاء کې داسې ووایه چې: پناه غواړم په رب دټولو خلکو ، په خاوند دټولوخلکو، په معبود دټولو خلکو ، له شره دهغه وسوسه اچونکي تښتېدونکي (شیطان)چې دخلکو په زړونوکې وسوسه اچوي ، دغه وسوسه اچونکي له پیریانو څخه وي ، اوکه له انسانانو څخه وي.

درکوع تسبیح

سُبحَانَ رَبِّيَ العَظِيم

زما ستر رب ته پاکي ده.

دقومې (له رکوع څخه دولاړېدو) تسمیع

ٙسمِعَ اللهُ لِمَن حَمِدَه

الله دثنا ویونکو ستاینه واورېده.

دقومې تحمید

رَبَّنَا لَكَ الحَمدُ

ربه تولې ستاينې ستالپاره دي.

دسجدې (په ځمکه دسر کيښودو) تسبيح

سبُــحَن رَبيِّ الاَعـلَى

زما درب شان ډير لوی دی.

تشهد ( التحياتٍ )

التّحِيّاتُ لِلّهِ وَالصَّلَوَاىِ وَالطَّيِبَاتُ اَلسّلامُ عَلَيكَ اَيُّهـَاالنَبيُّ وَ رَحمَىِ اللهِ وَ بَرَكَاتُهُ اَلسَّلامُ عَلَينَا وَ عَلَى عِبَادِ اللهِ الصَّالِـحِينَ، اَشَهَدُ اَن لاَ اِلهَ اِللااَلهُ وَاَشهَدُ اَنَّ مُـحَمَداً عَبدُه وَرَسُولُهُ.

ژباړه: ثنا اوستاينې خدای ته دي اوهم پاکې ، ای نبي! پرتا دې سلام ،دخدای رحمت اوبرکتونه وي . پرموږ اودخدای پرنيکو بنده ګانو دې سلام ي ، شاهدي ورکوم چې بې له خدايه بل معبود نشته او شاهدي ورکوم چې محمد e دخدای بنده اورسول دی .

درود شريف

اَللّهُمَّ صَلِّ عَلَى مُـحَمَدٍ وّعَلَى آلِ مُـحَمَّدٍ كَـمَا صَلَّيتَ عَلَى اِبرَاهِيـمَ وَعَلَى آلِ اِبرَاهِـيمَ اِنَّكَ حَـمِيدٌ مَّجِـيد، اَللّهُمَ بَارِك عَلَى مُـحَمَّدٍ وَّعَلَى آلِ مُـحَـمَّدٍ كَـما بَارَكتَ عَلَى اِبرَاهِـيمَ وَ عَلَى آلِ اِلبرَاهِـيمَ اِنَّكَ حَـمِيـدٌ مَّجِـيدٌ.

ژباړه: يا الله ! پرمحمد eاودهغه پرکورنۍ رحمت وورو ، لکه پرابراهيم u اودهغه پرکورنۍ دي چې لورولی وْ ، بيشکه ته ستايلی اولوی يې . يا الله ! پرمحمد e اودهغه پرکورنۍ برکتونه واوروه ، لکه پرابراهيم u اودهغه پرکورنۍ دې چې ورولي وْ ، بيشکه ته ستايلی او لوی يې.

له درود وروسته دعاء

اَللّهُمَ رَبَّنَا آتِنَافِي الدُّنيَا حَسَنىِ وَّفِي الآخِرَىِ حَسَنَىِ وَّقِنَا عَذَابَ النَّار

ژباړه :يا الله موږ ته په دنيا کې نعمت اوپه آخرت کې جنت راکړه اوددوزخ له اوره مو وساته.

په ځينو روايتونوکې دادعا هم راغلې ده:

اَللّـهُمَّ انيِّ ظَلَمتُ نَفسِي ظُلماً كَثِـيراً وَّلاَيَغفِرُالذُّنُوبَ الا اَنتَ فَاغفِـرلِي مَغفِـرَىِ مِّن عِندِكَ وَارحَمـنِي انَّكَ اَنتَ الغَفُـورُ الـرَّحِيم

ژباړه : یا الله ما پرځان ډیرظلم کړی دی او بیشکه چې له تا پرته څوك ګناوې ښنلی نه شي ، نو ماله خپل لوري وبښه،او راباندې ورحمیږه بې شکه ته ښنونکی اولوروونکی یې.

ســــــــلام

اَلسَّـلامُ عَـلَـیـکُم وَ رَحـمَـی اللهِ

پرتاسو دې سلام اودخدای رحمت وي.

له لمانځه وروسته دعاء

اَللّٰهُـمَّ اَنتَ السَّـلاَمُ وَ مِـنكَ السَّـلاَمُ تَبـَارَکـتَ یَا ذَاالـجَـلالِ وَالاِکـرَام

ژباړه : یا الله! سلامتي ورکونکی یواځې هم ته یې او سلامتي ستا له لوري وي ، دډیر برکت څښتن دلویي اوعزت خاوند یې.

دعاء قنوت

اَللّٰهُمَّ اِنَّا نَستَعِینُكِ وَنَستَغفِرُكِ وَنمِنُ بِكَ وَنَتَوَكَّلُ عَلَیكَ وَنُثنِي عَلَیكَ الـخَیر، وَنَشـكُرُكَ وَلاَنَكفُرُكَ، ونَـخلَعُ وَ نَترُكُ مَن یَّفجُرُكَ ،اَللّٰهُمَّ اِیَّاكَ نَعبُدُ وَلَكَ نُـصَلِّي وَنَسجُدُ وَاِلیَكَ نَسعَی وَنَحفِدُ وَنَرجُوا رَحـمَتَكَ وَنَخشَی عَذاَبَكَ اِنَّ عَذَابَكَ بِالكُفَّارِ مُلحِق

ژباړه :یا الله ! موږ له تانه مرسته غواړو ، اوله تانه ښنه غواړو اوپرتا ایمان لرو ، پرتا توکل کوو ، ستا غوره ستاینه کوو، ستا شکر ادا کوو، ستا ناشکرې نه کوو، له هغه چا سره پریکون اوداړیکو شلون کوو چې له تاسره پریکون کوي .

یاالله ! یواځې ستاعبادت اوستا لمونځ کوو، تاته سجده کوو، ستاپرلور پنا دروړو ، درمنډې وهو ، یواځې ستادرحمت هیله من یو ، ستاله عذابه ویریږو، اوبې شکه ستا عذاب کافرانو ته رسیدونکی دی .

## داوداســــــه طـریــــقه

پـوښـتـــنه :اودس څه ډول کول په کاردی ؟

ځـــــواب : په پاك لوښي كې پاكې اوبه را واخله، پرپاك صاف او لوړ ځای كښينه، په اوداسه كې قبلې ته مخامخ كيناستل غوره دي ، خوكه چيرته مو كه نه وه هيڅ زيان نه لري ، لستوڼي ترڅنګلو پورې پورته كړه، بيا بسم الله ووايه، اودواړه لاسونه ترمړوندو پورې ومينځه، بيادرى وارې په خوله اوبه ورغړوه، مسواك ووهه، كه مسواك نه وي نوګوته په غاښوپورې وموښه ، بيا درى ځله پزې ته اوبه واچوه ، دچپه لاس په خچڼه ګوته پزه پاكه كړه ، درى ځله مخ ومينځه ، خو مخ ته په تيزي سره اوبه مه اچوه ، بلكې په كرارسره تندي ته اوبه واچوه اومخ ومينځه.

دويښتانو دشنه كېدو له ځايه نيولې دزنې تر لاندې برخې پورې ، اوديوه غوږ څخه تربل غوږ پورې مخ مينځل پكاردي ، بيا له څنګلو سره درې وارې دواړه لاسونه ومينځه ، لومړى ښى لاس درى وارې بيا چپه لاس درى وارې مينځل په كاردي .

بيا لاس په اوبو لوند كړه دسر مسح وكړه ، اود غوږو مسح وكړه ، بيا د ورميږ (غاړه) مسح وكړه ، اويواځې يې يوځل كول په كاردي . درى ځله دواړه پښې له بيډيو سره ومينځه ، لومړى دښی بيا چپه پښې مينځل په كاردي .

## دلـمـانـځـه طـريـقـه

پـوښـتـــنه :دلمونځ كولو طريقه څه ده ؟

ځـــــواب : دلمانځه دكولو طريقه داده چې:

كله چې اودس وكړې ، پاك كالى واغونده ، پرپاك ځاى قبلې ته مخامخ ودرېږه ، دلمانځه نيت وكړه ، دواړه لاسونه غوږوته يوسه او " الله اكبر" ووايه ،اوبيا لاسونه دنامه دغوټۍ لاندې داسې وتړه چې دښي لاس ورغوى دچپ لاس پرخپړه راشي .

په لمانځه كې په ادب سره ودرېږه يوې بلې خواته مه ګوره دالله تعالى لورته ځيراوسه ، لاسونه چې وتړې لومړى داثناء ولوله :

سُـبحَانَـكَ اللـّهُمَ وَبِحـَمدِكَ وَتَبـارَكَ اسـمُكَ وَ تـَعَالَى جَـدُّكَ وَلاَ اِلـَهَ غَـيـرُك

بيا تعوذ ( اعـوذ بالله من الشّيطان الرّجيم ) او تسميه ( بسم الله الرّحـمن الرّحيم ) او الحمد لله ولـوله ، الحمد لله چې كله خلاصه كړې، نو په كراره آمّين (خدايه زما دعا قبوله كړې) ووايه ، په دې پسې سورت اخلاص يا بل سورت چې ياد دې وي ووايه ، بيا " الله اكبر" ووايه ركوع ته كښته شه ، په ركوع كې ځنګنونه په دواړه ورغوو ونيسه.

درکوع تسبیح ( سُبحانَ ربيّ العظیم ) درى وراه یا پنځه واره ووایه ، بیا تسمیع ( سمِع اللهُ لمن حمده) هم ووایه ، بیا تکبیر ووایه اونیغ ودریږه ، تحمید (ربّنا لك الحمد) هم ووایه، بیا تکبیر ووایه ، سجدې ته داسې لاړشه چې لومړی دواړه ځنګنونه پرمځکه ولګوه، دواړه ورغوي کښیږده، پزه ، تندی اومخ مو باید ددواړو لاسو ترمنځ د سجدې پرځای وي ، دسجدې تسبیح ( سبحان ربيّ الاعلی) درى یا پنځه وارې ووایه، بیا تکبیر ووایه اوله سجدې راپاځه نیغ کینه ،تکبیر ووایه دوهمه سجده هم په همغه ځېر وکړه، بیاوایه پورته شه ، د ولاړېدو په وخت کې پرمځکه لاسونه مه لګوه .

په سجدو سره یو رکعت پوره شو او س نو دوهم رکعت پیل کړه ، بسم الله او الحمد لله ووایه او یو بل سورت هم ورسره ووایه ، بیا رکوع ، قومه اودواړه سجدې وکړه ، کېنه ، اول تشهد بیا درود شریف ووایه ، او بیا لومړی ښي لور، بیاچپ لورته مخ واړوه ، اوس نو دوه رکعته لمونځ پوره شو .

له سلام ګرځولو وروسته اَللّٰهُمَّ اَنتَ السَّلاَمُ وَمِنكَ السَّلاَمُ تَبَارَكتَ يَا ذَاالجَلالِ وَالاكرَام ووایه ، او لاس پورته کړه دعاء وکړه خو ډېر یې مه پورته کوه داسې چې تراوږو دې پورته شي دعا چې کله خلاصه کړې دواړه لاسونه پرمخ تېرکړه .

پـوښـتـنه :ددوو سجدو په منځ کې اویا هم دتشهد د ویلو په حالت کې څه ډول کیناستل په کار دي ؟

ځـــواب : ښې پښه باید ولاړه اودګوتو مخ یې دقبلې لورته وي اوچپه پښه دې څملوه پرې کینه دناستې په حال کې دواړه لاسونه په ځنګنونو ایښودل پکاردي .

پـوښـتـنه :دامام، مقتدي، اومنفرد (یواځې لمونځ کونکی) په لمانځه کې څه فرق دی ؟

ځـــواب : دامام، مقتدي اومنفرد په لمانځه کې لږ فرق شته ، یو فرق دادی چې : امام او منفرد دواړه په اول رکعت کې له ثنا وروسته اعوذ بالله او بسم الله او الحمدلله شریفه او سورت ټول پوره وایي ، اوپه دوهم رکعت کې هم بسم الله او الحمدلله شریفه اوسورت پوره وایي خو مقتدي به یواځې په لومړي رکعت کې ثنا وایي اونور په دواړو رکعتونو کې پټه خوله ولاړ وي .

دوهم فرق دادی چې : درکوع څخه دولاړېدو په وخت کې امام اومنفرد دواړه" سمع الله لمن حمده " وایي اومنفرد دتسمیع سره تحمید هم ویلای شي، خو مقتدي ته یواځې " ربنالك الحمد" ویل پکاردي .

پـوښـتـنه :که لمونځ درى یا څلور رکعتي وي نو بیا څه ډول کیږي ؟

ځـــواب :دوه رکعته لمونځ خو باید همغسې وکړي څرنګه چې پورته تیر شو خوپه اوله قعده کې دې له التحیات اویاتشهد نه وروسته درود شریف نه وایي ، بلکې " الله اکبر" دې ووایي او پورته دې شي .

که لمونځ واجب یاسنت یا نفل وي نو پاتې دوه رکعته دې د مخکني دوو رکعتو نو په څېروکړي ، او که چیرې فرض وي نو په دریم اوڅلورم رکعت کې له " الحمدلله" نه وروسته دې سورت نه وایي ، اوپاته نوردې دهمغو پخوانیو دوو رکعتونو په څیر وکړي .

پـوښـتـنه :آیّا سنت او یانفل لمونځ دري رکعته هم کیږي؟

ځـــواب : نه ! سنت یا نفل لمونځ دری رکعته نه کیږي دوه یاڅلور رکعته کیږي .

پـوښـتـنه :درکوع کولو سهي طریقه څرنګه ده ؟

ځـــواب :رکوع داسې باید وشي چې ملاله سر سره یو برابر وي ،داسې چې سر نه له ملالوړ اونه ټیټ وي ، او دواړه څنګلې باید له خېټې او تشیو نه لرې وي ، او ځنګنونه باید په خپرو ټینګ ونیسې.

پـوښـتـنه :دسجدې سهي طریقه څرنګه ده ؟

ځـــواب : سجده داسې پکار ده چې خپرې پر مځکه وي او مړوندونه اوڅنګلې دمځکې څخه پورته وي، نس (ګیده) دې دورنو څخه لرې او لاسونه دپښو څخه جلا وي.

پـوښـتـنه :له لمانځه وروسته په ګوتو باندې دشمیر په وخت څه ویل کیږي ؟

ځـــواب : " سبحان الله " (33)واره الحمدلله " (33)واره ، " الله اکبر" (33) واره ویل کیږي چې ډیر زیات ثواب لري .

## اســـــلام کلــمې

اولــه : کلـمـهٔ طـیبـه

لااِلـهَ اِلاالله مـُحَمّـَدٌ رَّسُـولُ اللهِ

له خدای تعالی نه پرته بل دعبادت وړ (معبود) نشته محمدeدالله Y رسو ل دی .

دوهــمه : د شـهادت کلــمـه

اَشهَـدُ اَنَ لا الـهَ الا اللهُ وَحـدَهُ لاشَـرِيكَ لَـهُ وَاَشهَـدُ اَنَ مُـحَـمَّداًعَـبدُه و رَسُـولُـه

ژباړه : زه شاهدي ورکوم چې داللهYنه پرته بل خدای دعبادت وړ نشته هغه یو دی سیال نه لري، اوداشاهدي ورکوم چې محمد e يي بنده او رسول دی.

دریــمـه : د تـمجــید کـلـمــه

سُبحَانَ اللهِ وَالـحَمدُللهِ وَلا اِلَهَ اِلااللهُ وَاللهُ اَكبَرَ وَلاحَولَ وَلا قُوَّى اِلا باللهِ العَلي العَظِيم

ژباړه : خدای Y پاك دی ستاینې هغه لره دي له خدایه پرته دعبادت وړ بل ذات نشته ، خدای Y لوی دی له ګناوو دساتنې اود نیکو کارونو دکولو توفیق یواځې هغه ورکوي هغه دلويي او شوکت څښتن دی .

څــلـورمـه : دتـوحـید کلـمـه

لااِلَهَ اِلااللهُ وَحدَهُ لاشَرِيكَ لَهُ، لَهُ المُلكُ وَلَهُ الـحَمدُ يُحيِى وَيُمِيتُ وهو حيّ ٌ لا يمُوتُ اَبداً اَبداً ذُوالجَلالِ وَالاكرَامِ بِيَدِهِ الـخَير وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيءٍ قَدِير.

له خدایه پرته دعبادت وړ بل ذات نشته ، سیال نه لري پاچاهي اوستاینې هغه لره دي، ژوندي کول اومړه کول يې په واك کې دي ، تل ترتله به ژوندی وي، دعزت اوشوکت څښتن دی او ښېګڼه يې په واك کې ده ، په هرڅه قادر دی.

پنـځـمـه کلـمـه : د استـغـفا ر کلـمـه

اَستَغفِرُاللهَ رَبِيِّ مِن كُلِّ ذَنبٍ اَذنَبتُهُ عَمَداً اَوخَطاً سِرّاً اَوعَلانِيَى وَاَتُوبُ اَلَيهِ مِنَ الذَّنبِ الذِي اَعلَمُ وَمِنَّ الذَّنبِ الذِّي لا اعلَمُ اِنَّكَ اَنتَ عَلّامُ الغُيُوبِ وَسَتَّارُ العُيُوبِ وغَفَّارُ الذُّنُوبِ وَلاحَولَ وَلاقُوَّى اِلا بِاللهِ العَلّيِ العَظِيم.

ژباړه : زه له هغه ذاته ښښنه غواړم چې زما خدای دی، له هرې هغې ګنا څخه چې په قصداویا مې په هېره سره کړې وي ، دهغه په درباركې له هرې ګناڅخه چې ماته معلومه وي اويا نه وي توبه باسم

په تحقیق سره خدایه ! په پټو رازونو خبر يې ! دعیبونو پټوونکی، دګناوو ښښونکی یې ! له ګناڅخه دساتنې اوښوکارونودکولو توفیق یواځې ته ورکوې! په تحقیق سره دلويي اوشوکت څښتن يې !

شپــږمــه : لـه کفـره دبـې زارۍ کلـمـه

اَللَّـهُمَّ اِنيِّ اَعُـوذُبِكَ مِنَ اَن اُشرِكَ بِكَ شَياً وَاَنَا اَعلَمُ بِهِ وَاَستَغـفِرُبِكَ لِما لا اَعلَمُ بِهِ تُبـتُ عَنـهُ وَتَـبرات مِنَ الكُـفرِ وَالـشِرِكِ وَالكَـذِبِ وَالغِـيبَى وَالبِـدعَـى وَالنَمِـيمَـى وَ الفَـواحِشِ وَالبُهـتَانِ وَالـمعاصِي كُلِّهَا وَاَسلَمتُ وَاَقُـولُ لا اِلَهَ اِلاالله مُـحَمَّـدٌ رَّسُـولُ اللهِ

خدایه ! زه پرتا پنا غواړم له دې څخه چې له تاسره بل څه سیال وګڼم اوزه پرې پوهیږي اوله هغه شرك څخه چې پرې نه پوهیږم خدایه تاته توبه باسم له هر کفر، شرك، درواغو، غیبت ، بدت، چغل خوري، سپکوسپورو، تور لګولو اوټولو ګناوو څخه، اومااىمان راوړی اووایم چې : له خدای تعالی نه پرته بل دعبادت وړ (معبود) نشته محمدeدالله Yرسو ل دی.

## دوهمه برخه

لومــړی ځـــانـګه

تـعلـیـم الایـمان

داسـلامي عــقایـدو زده کړه

بســـــم الله الرحـــــمن الــــــرحـــیم

نحمدالله العلی العظیم ونصلي علی رسوله الکریم

پـوښــتنه :داسلام بنیاد پر څو شیانو ولاړ دی ؟

ځـــواب : داسلام بنیاد پر پنځو شیانو ولاړ دی.

پـوښــتنه :هغه پنځه شیان چې داسلام بنیاد پرې ولاړ دی کوم کوم دي ؟

ځـــواب :هغه پنځه شیان دادي:

اول : کلمهْ طیبه یا کلمه شهادت مطلب دا چې په زړه سره  منل اوپه ژبه یې اقرار کول.

دوهم : لمونځ کول.

دریم : زکات ورکول.

څلورم : دروژي په میاشت کې دروژې نیول.

پنځم : حج کول.

پـوښــتنه :کلمهْ طیبه کومه ده اومعنی یې څه ده ؟

ځـــواب :کلمهْ طیبه داده:

لاا له الاالله محمد رسول الله

او مطلب يي دادي چې دالله تعالی نه پرته بل هیڅ څو ك دعبادت وړ نشته او حضرت محمد e دالله تعالی راليږلي رسول دی.

پـوښــتنه :دشهادت کلمه کومه اومعنی يي څه ده ؟

ځـــواب :د شهادت کلمه داده:

اشهـد انّ لاّ اله الاّالله واشهـد انّ مـحمّـداً عبده ورسـوله

او معنی يي ده چې: زه شاهدي ورکوم چې دالله تعالی نه پرته دعبادت وړبل هيڅوك نشته او شاهدي ورکوم چې حضرت محمد e دالله تعالی بنده اورسول دي.

پوښتنه : دکلمې دمعنااومطلب له پوهيدلوپرته يواځې يې په ژبه ويلوسره سړی مسلمانيدای شي ؟

ځواب : نه ! بلکې په معنا پوهيدل اوپه زړه سره يقين کول اوپه ژبه يې اقرار کول ضروري دي.

پوښتنه : په زړه سره يقين اوپه ژبه اقرار کولو ته څه وايي ؟

ځواب : ايمان وايي.

پوښتنه :ګونګی چې په ژبه اقرار کولای نه شی هغه به څه ډول ايمان راوړي ؟

ځواب : دخدايي عذر له امله دهغه اشاره هم کافي بلله کيږي معنا داچې : هغه دې په اشاره سره داوښيي چې الله تعالی يو دی اوحضرت محمد eدخدای تعالی پيغمبر دی.

پوښتنه : دمسلمانانو لپاره پرڅو خبرو ايمان لرل ضروري دي ؟

ځواب : پراوو "7 "خبرو ، چې يادونه يې په ايمان مفصل کې راغلې:

اَمَنـتُ بِـاللهِ وَمَلائکتـهِ وَکُتُـبِهِ وَرَسُولِـهِ وَالـيَومِ الاَخِـرِ وَالقَـدَرَ خَـيرِهِ وَشَرِهِ مِـنَ اللهِ تَعـالی وَالبَعثِ بَعدِ الـمَوت

ايمان مې راوړی پرالله Y باندې پرملائکوېې، اوپرکتابونوېې او د هغه پررسولانو، دقيامت پر ورځې او په دې چې دښه اوبد تقدير دالله تعا لی له لوري دی، او له مرګ وروسته پرژوندي کېدو باندې.

دخدای تعالی په هکله دمسلمانانوعقيده

پوښتنه : دخدای تعالىپه هلکه دمسلمانانو عقیده باید څه ډول وي ؟

ځواب : مسلمانان باید داعقیده ولري چې:

-1خدای تعالی یو دی.

-2یواځې همغه دعبادت اوبندګۍ وړ دی اوله هغه پرته دبندګۍ وړ بل هیڅوك نشته.

-3هغه سیال نه لري.

-4له هرڅه خبر دی هیڅ شی ترینه پټ نه دي.

-5دپوره طاقت اوقدرت خاوند دی.

-6ځمکه، آسمان، سپوږمۍ، لمر،ستوري، ملائکې،انسانان، پیریان، او لنډه داچې ټول جهان یواځې هغه Yپیداکړی اوهغه یې مالك دی

-7مرګ اوژوند دهغه له لورې دي، یعنې دټول مخلوق ژوند اومرګ دهغه په واك کې دي.

-8هغه Y ټول مخلوق ته روزي ورکوي.

-9خوراك، څښاك او خوب نه کوي.

-10تل وْ اوتل ترتله به وي.

-11هغه Y هیچا پیداکړی نه دی.

-12نه یې پلار شته نه زوی ، نه لور، نه ښځه ، اونه هم له چاسره دغه ډول خپلوي لري ، له دارنګه ټولو خپلولیو څخه پاك دی.

-13هرڅه ده ته محتاج دي، خودی هیچا ته محتاج نه دی اوهیچ شي ته اړتیانه لري.

-14بې مثله دی هیچ یو شی یې په څېر نه د ي.

-15له ټولو عیبونوپاك دی.

-16دمخلوق په څېر لاس، پښې، پزه او غوږونه نه لري.

-17ملایکې یې پیداکړي اوددنیا په بیلابیلو کارونویې ګمارلې.

-18دخپل مخلوق دلارښوونې (هدايت) لپاره يې پيغمبران راليږلي، څو خلکو ته رښتيني لار (دين) ور وښيي، ښې خبرې ورزده اوله بدو يې منع کړي.

ملا ئـکـې ( فـرښتـې )

پـوښــتنه :ملائکې څوك دي ؟

ځـــواب :ملائکې دالله تعالى يو جلا مخلوق دي له نوره يې پيدا او زموږ له سترگوپنا دي نه نارينه او نه هم ښځېنه دي، نه دخداى تعالى دحکم نافرماني او نه گناه کوي، په کومو کارو يې چې مقرري کړي دي په هغو بوختې دي.

پـوښــتنه :ملائکې څومره دي ؟

ځـــواب :دملائکو شمير له خداى تعالى پرته بل هيڅ چاته معلوم نه دى  هو! دومره موږ ته معلومه ده چې ملائکې ډيرې اوڅلور يکې مقربې اومشهورې ملائکې دي.

پـوښــتنه :مقربې اومشهورې ملائکې کومې دي ؟

ځـــواب :اول : حضرت جبرائيل u چې دالله تعالى کتابونه، احکام، اوپيغامونه به يې پيغمبرانو عليهم السلام ته راوړل.

دوهم: حضرت اسرافيل uچې دقيامت شپيلۍ به پوکي.

دريم: حضرت ميکائيل u چې دباران داورښت اومخلوق ته دروزي رسولو په کارو مقرره ده.

څلورم : حضرت عزرائيل u چې له مخلوق دارواوو( روح ) په اخيستو مقرره  ده.

دخداى تـعـالـى کـتـابـونـه

پـوښــتنه :دخداى تعالى کتابونه څودي ؟

ځـــواب :دخداىتعالى ډير زيات واړه اوغټ کتابونه  پر پيغمبرانو عليهم السلام نازل شويدي، غټو ته يې کتابونه او وړو ته يې صحيفې وايي څلور کتابونه مشهوردي.

پـوښــتنه :څلور مشهور آسماني کتابونه کوم کوم دي ؟ او په کومو پيغمبرانو نازل شويدي ؟

ځـــواب:

-1تورات : چې په حضرت موسى u نازل شوى.

-2زبور: چې په حضرت داوْ د uنازل شوي ده.

-3انجيل:چې په حضرت عيسى u نازل شوي دى.

-4قرآن کريم : چې په حضرت محمدeنازل شوي دي.

پـوښــتنه :صحيفې څومره دي او پرکومو پيغمبرانو نازلي شوي دي ؟

ځـــواب :دصحيفو شميره معلومه نه ده، خو يوڅه صحيفې پر حضرت آدم u اويوڅه پرحضرت شيث uاويوڅه پر حضرت ابراهيم u نازلي شويدي له دې پرته نورې صحيفې هم شته چې پرځينو نورو پيغمبرانوعليهم السلام نازلي شوي دي.

دخداى تعالى پيغمبران عليهم السلام

پـوښــتنه :رسول چاته وايي ؟

ځـــواب :رسول انسان اودخداى تعالى بنده وي خداى تعالى خپلو بندګانو ته دحکمونو رسولوله پاره ټاکلي وي، هغوى رښتيا ويونکي وي درواغ هيڅ کله نه وايي، ګناه نه کوي، دخداى تعالى په امرسره معجزې ښکاروي، پيغامونه يې په پوره ډول مخلوق ته رسوي کموالي او زياتوالي پکې نه کوي اونه هم هيڅ يو پيغام پټوي.

پـوښــتنه :دنبي معنا څه ده ؟

ځـــواب :دنبي معنا همداده چې هغه دخداى تعالى بنده اوانسان وي دالله تعالى حکمونه بندګانو ته رسوي رښتينى وي درواغ نه وايي، ګناه نه کوي، دخداى تعالى Yپه حکمونوکې کموالى او زياتوالى نه کوي او نه هم هيڅ يو حکم پټوي.

پـوښــتنه :دنبي اورسول تر منځ څه فرق شته ؟ اوکه دواړه يو شى دي ؟

ځـــواب :دنبي اورسول په منځ کې لږ فرق شته اوهغه داچې : رسول هغه پيغمبر ته وايي چې دخداى تعالى له لورې نوى شريعت اوكتاب ورکړل شوي ويو، اونبي هرپيغمبرته وايي ، نوى شريعت اوكتاب ورکړل شوي وي اوكه نه داسې چې دمخكني شريعت او كتاب تابع وي.

پـوښـــتنه :آيا يو سړى په خپل كوښښ اوعبادت سره نبي كيدلي شي ؟

ځـــواب :نه ! بلكې هغه څوك نبي وي چې خداى تعالى يې نبي وګرځوي معنا داچې دنبي اورسول كېدل دانسان په كوښښ او ارادې پورې تړلي نه دي، بلكې دامرتبه دخداى تعالى له لوري وركول كيږي.

پـوښـــتنه :درسولانو اونبيانو شمير څومره څه دى ؟

ځـــواب :دنيا ته ډير رسولان اونبيان راغلي دي خو دهغوي پوره شميره يواځې خداى تعالى ته معلومه ده، خو مونږ اوتاسو بايد دا عقيده ولرو چې دخداى تعالى ټول رسولان هرڅومره چې وي برحق اوريښتيني دي.

پـوښـــتنه : لومړنى پيغمبر څوك وْ ؟

ځـــواب :تر ټولولومړى پيغمبر حضرت آدم u دي.

پـوښـــتنه :تر ټولو وروستى پيغمبر څوك دي ؟

ځـــواب :ترټولو وروستى اوآخري پيغمبر حضرت محمد eدي.

پـوښـــتنه :له حضرت محمد e وروسته به بل پيغمبر راځي اوكه نه ؟

ځـــواب :نه! ځكه چې پيغمبري اونبوت پر حضرت محمد مصطفى e پاى ته ورسيده له ده مبارك وروسته ترقيامته پوري هيڅ يو نبي نه راځي، له ده مبارك وروسته چې څوك دپيغمبري دعوه كوي هغه درواغجن دى.

پـوښـــتنه :په رسولانو كې ترټولو غوره (افضل) رسول څوك دى ؟

ځـــواب :زمونږ پيغمبر حضرت محمد e په ټولو نبيانو او رسولانو كې غوره او لوى دى ، دى كه څه هم دخداى تعالى بنده او اطاعت كونكى دى خو له دخداى تعالى وروسته په مخلوق كې ترهرچا دده مبارك مرتبه زياته ده.

دقيامت بيان

پـوښـــتنه :دقيامت ورځ كومې څه ته وايي ؟

ځـــواب :دقيامت هغې ورځي ته وايي په کومه کې به چې ټول انسانان او حيوانان مړه کيږي، اوټوله دنيا به له منځه ځي، غرونه به دپمبوو دګلانو په څېر په هوا کې والوزي ستوري به ټوټه ټوټه شي لاندې به راولوېږي، لنډه داچې هرشی به زره زره او له منځه ولاړشي.

پـوښــتنه :ټول انسانان اوحيوانان به څرنګه مړه کيږي ؟

ځـــواب :حضرت اسرافيل u به شپيلۍ پوه کړي د شپيلۍ آواز به يې دومره "ويروونکی" اوسخت وي چې له هيبت به يې ټول خلك مړه اوهر شی به زره زره او فنا شي.

پـوښــتنه :قيامت به څه وخت وي ؟

ځـــواب :قيامت راتلونکی دنخو ټاکلی وخت يې له الله تعالی پرته هيچاته معلوم نه دی، هو ! دومره معلوم دي چې دجمعې په ورځ دمحرم په لسمه نيټه به وي اوزمونږ پيغمبر eځينې نښانې يې ښودلې دي هغو ته که وکتل شي معلوميږي داچې قيامت نږدې دی.

پـوښــتنه :دقيامت نښانې کومې دي ؟

ځـــواب :پيغمبر eفرمايلي دي چې:

-1کله چې په دنياکې ګناوې زياتې شي.

-2خلك دخپل مور او پلار نافرمانه شي اوپرهغوی سختې پيل کړي.

-3په امانت کې خيانت پيل شي.

-4سندرې غږول، رقص، اوسرود زيات شي.

-5وروستي خلك مخکنيو بزرګانو ته بد ويل پيل کړي.

-6بې علمه اوکم عمله خلك مشران شي.

-7شپانه اودټيټې درجې خلك لوړ لوړ عمارتونه جوړول پيل کړي.

-8ناپوه خلکو ته غټې چوکۍ په لاس ورشي، نو په دې پوه شه چې قيامت نږدې دی.

# دتقدير بيان

پـوښــتنه :تقدير څه ته وايي ؟

ځـــواب :دهرې خبرې او هرشي دښه اوبد اندازه چې له پخوانه دخداى تعالى په علم كې ټاكلې شوې اودهرشي له پيداكيدو دمخه خداى تعالى ته معلومه وي ، دالله تعالى همدې علم او اندازې ته تقديروايي ، هيڅ يوښه اوبد شى دالله تعالى له علم او اندازې څخه دباندې نه دى.

لـه مـرگ وروستــه بيــا ژونـدي كېـدل

پـوښــتنه :له مرگه وروسته دبياژوندي كيدلو مطلب څه دى ؟

ځـــواب :كله چې دقيامت په ورځ ټول شيان له منځه ولاړ شي اسرافيل u به دوهمه شپيلۍ پوه كړي چې په دې سره به بيرته ټول شيان او انسانان راژوندي شي ، د حشر په ميدان كې به ټول مخلوق  دالله تعالى درانه حضورته وړاندې شي ، حساب به اخستل كيږي ، دښو اوبدو كارو بدله به وركول كيږي ، په كومه ورځ چې داكارونه ترسره كيږي هغې ورځې ته "يوم الحشر" (دجمع كيدو ورځ)، "يوم الجزا" او "يوم الدين" (بدلي وركولو ورځ)، او"يوم الحساب" (حساب ورځ) وايي.

پـوښــتنه :په ايمان مفصل كې چې دكومو اوو (7) شيانو يادونه راغلې په هغو كې كه  څوك يو يا دوه خبرې نه مني مسلمان بلل كيداى شي اوكه نه ؟

ځـــواب :نه ! هيڅكله نه ، كله چې يوڅوك دالله تعالى كتابونه، ملائكې، دقيامت ورځ،  تقدير، اوله مرگه وروسته بياژوندي كيدل نه مني مسلمان كيدلاى نه شي.

پـوښــتنه :حضرت پيغمبر eداسلام بنياد پنځه شيان ښولي، په هغو كې خو دملائكو اودالله تعالى دكتابو ،دقيامت ، تقدير اونورو يادونه گ نه ده شوې ؟

ځـــواب :په هغو پنځو شيانو كې يوهم پرحضرت محمد eباندې دايمان راوړل دي اوكله چې يوڅوك پرحضرت محمد e باندې ايمان راوړي ، نوهغه به خامخا دده مبارك ټولې ښوولې خبرې  مني ، اودالله تعالى كتاب كوم چې

پیغمبر eراوړی دی پرهغه به هم خامخا ایمان راوړي او ټولې هغه خبرې چې په ایمان مفصل کې یې یادونه راغلې دخدای تعالی له کتاب (قرآن کریم)اودپیغمبر eله ویناوو ( احادیثو )څخه ثابتې شوې.

پـوښــتنه :که یوڅوك ددې ټولو خبرو په زړه سره یقین اوژبه سره اقرار وکړي ، خو لمونځ نه کوي او یازکات نه ورکوي یا روژه نه نیسي، یا حج نه کوسي هغه مسلمان دی ؟

ځـــواب :هو ! مسلمان دی خو سخت ګناه ګار اودالله تعالی نه یاغي دی ، داسې مسلمان ته فاسق وایي ، دوی به لومړی دخپلو ګناوو په سزا رسول کیږي بیا به خلاصون مومي.

دوهـــمـــه څـــانـګه

دعـبــاداتـو ښـــوونـه

تعلیم الارکان

داسلامي اعمـالو زده کړه

بســـم الله الرحـــــمن الــــرحـــیم

پـوښــتنه :اسلامي اعمال څه ته وایي ؟

ځـــواب :هغه پنځه شیان پرکومو چې داسلام بنیاد ولاړ دی چې لومړني ته یې ایمان وایي ، چې بیان یې تاسې داسلامي عقایدو ترعنوان لاندې په اوله څانګه کې لوستلی ، پاته څلور نور شیان (لمونځ، زکات، روژه او حج) دې واړو ته اسلامي اعمال وایي ، په همدې دویمه څانګه کې به لومړی تاسې دلمانځه بیان ولولئ.

## لـمـونـځ

پـوښـــتنه :لمونځ څه ته وايي ؟

ځـــواب :لمونځ دالله تعالی دعبادت اوبندګۍ يوه غوره او جلا طريقه ده چې الله تعالی اودهغه رسول e بندګانو ته ښوولې.

پـوښـــتنه :له لمانځه مخکې دکومو شيانو کول ضروري دي ؟

ځـــواب :له لمانځه مخکې اووه (7) خبرې ضروري دي ، چې له هغو پرته لمونځ نه کيږي همدې خبرو ته دلمانځه شرطونه او فرايض وايي.

پـوښـــتنه :هغه اوه (7)خبرې کومې دي چې له لمانځه نه يې مخ ته کول ضروري دي ؟

ځـــواب :اول :- دبدن پاکوالی، دوهم :- دجامو يا کاليو پاکوالی، دريم :- دلمانځه دځاپاکوالی، څلورم :- دعورت پټول، پنځم:- دلمانځه دوخت پيژندل، شپږم:- قبلې ته مخ کول، اووم:- نيت کول.

### دلمانځه دلومړي شرط(پاکوالي) بيان

پـوښـــتنه :دبدن پاکوالی څه ته وايي ؟

ځـــواب :دبدن پاکوالی دادی چې هيڅ ډول پلتي اونجاست پرې نه وي.

پـوښـــتنه :پلتي (نجاست) څو ډوله دی ؟

ځـــواب : دوه ډوله ده : يوه حقيقي اودوهمه حکمي.

پـوښـــتنه :حقيقي پلتي (نجاست) څه ته وايي ؟

ځـــواب :هغه ښکاره پلتي چې په سترګو ليدل کيږي حقيقي نجاست بلل کيږي لکه : وړې بولې (متيازې)، غټې بولې ، وينې ، او شراب.

پـوښـــتنه :حکمي نجاست څه ته وايي ؟

ځـــواب :هغه پلتي چې په سترګو نه لېدل کيږي خو د شريعت د حکم له مخې ثابته شوې وي حکمي نجاست بلل کيږي لکه : بې اودسي، جنابت.

پـوښــتنه :دلمانځه لپاره له کوم ډول نجاست څخه دبدن پاکوالی ضروري دی ؟

ځـــواب :له دواړه ډوله نجاست څخه دبدن پاکوالی ضروري دی.

پـوښــتنه :حکمي نجاست څو ډوله دی ؟

ځـــواب :دوه ډوله دی : لومړی کمکی حکمي نجاست چې حد ث اصغر ورته وايي ، دوهم غټ حکمي نجاست چې حد ث اکبر او جنابت يې بولي.

پـوښــتنه :دکمکي حکمي نجاست څخه دبدن دپاکولو طريقه څه ډول ده ؟

ځـــواب :له کمکي حکمي نجاست څخه بدن په اوداسه سره  پاکيږي.

داوداسه بيان

پـوښــتنه :اودس څه ته وايي ؟

ځـــواب :کله چې سړی دلمانځه اراده وکړي ، نو په پاك لوښي کې دې پاکې اوبه را واخلي ، لومړی دې ترمړوندو پوري دواړه لاسونه ومينځي ، ورپسې دې درى واري په خوله اوبه ورغړوي ، مسواك دې ووهي ، بيا دې درى ځله پوزې ته اوبه واچوي او په کيڼ لاس دې پاکه کړي بيابه درى وارې مخ ومينځي ، ورپسې دې درى واره دواړه لاسونه ترڅنګلوپورې ومينځي، بيا دې دسر او غوږو مسح وکړي ، بيابه دواړه پښې تر بيډيو ومينځي.

همدې ته اودس وايي چې دکولو طريقه يې تاسې د تعليم الاسلام په لومړی برخه کې لوستې ده.

پـوښــتنه :آيا په اوداسه کې داټولې خبرې ضروري دي ؟

ځـــواب :نه ! په اوداسه کې ځيني شيان ډيرضروري دي ، اوکه پريښودل شي اودس نه کيږي هغوته فرض وايي ،اوځينې خبرې بيا داسي دي چې په کولو سره يې ثواب زياتيږي ، او که پاته شي څه زيان نه لري چې همدې ته مستحب وايي.

پـوښــتنه :په اوداسه کې څو فرضونه دي ؟

ځـــواب :په اوداسه کې څلورفرضونه دي:

1. دمخ مینځل دسرد ویښتانو دشنه کېدو له ځایه نیولې دزنې ترلاندې برخې پورې ،د یوه غوږ له نرمۍخخه نیولې دبل غوږ ترنرمۍ پورې دي.

2.ترڅنګلو ورې دواړه لاسه (لومړی ښی اوبیا چپ) پرمینځل

3. دسر دڅلورمې برخې مسح کول.

4. ددواړو پښومینځل ترښنګرو(بېډیوپورې).

پـوښــتنه :په اوداسه کې څو شیان سنت دي ؟

ځـــواب :په اوداسه کې دیارلس (13) شیان سنت دي.

1.داوداسه نیت.

2.بسم الله الرحمن الرحیم ویل.

3.اول ترمړوندو دواړه لاسه مینځل.

4.مسواك وهل.

5.خوله مینځل.

6.درې وراه په کینې لاس پوزې ته اوبه اچول.

7.دږیرې خلالول.

8.دلاسو اوپښو د ګوتو خلالول.

9.هراندام (غړی)درې وراه مینځل.

10.دټول سر مسح، یعني لوند لاس پرسرتیرول.

11.ددواړو غوږو مسح کول.

12.په ترتیب سره داندامونومینځل.

13.پیوسته اودس کول داسې چې یواندام لا وچ شوی نه وي سمدستي بل اندام پرېمنځل شي.

پـوښــتنه :په اوداسه کې څوشیان مستحب دي ؟

ځـــواب :په اوداسه کې پنځه (5)شيان مستحب دي:

.1له ښي اندام نه شروع کول ، چې ځينې علماېې په سنتو کې شماري.

.2ورمېږ(غاړه) مسح کول.

.3دبل چاله کومك پرته اودس کول.

.4قبلې ته مخامخ کښيناستل.

.5پرپاك او لوړ ځاى باندې اودس کول.

پـوښــتنه :په اوداسه کې څو شيان مکروه دي ؟

ځـــواب :په اوداسه کې څلور (4) شيان مکروه دي:

.1پرناولي ځاى اودس کول.

.2په ښي لاس دپوزې پاکول.

.3په اوداسه کې دنيايي خبرې کول.

.4دسنت پرطريقې خلاف اودس کول.

پـوښــتنه :اودس په څو شيانو سره ماتيږي ؟

ځـــواب :په اتو (8) شيانو سره اودس ماتيږي چې داوداسه نواقض يعني ماتوونکي ورته وايي:

.1غټې او وړې بولې کول، يا دهمدې دوو شرمځايونو څخه ديوبل شي وتل.

.2باد پريکېدل (دشاڅخه هوا وتل).

.3دبدن ديو ځايه څخه دوينې او نوونو بهېدل.

.4په ډکه خوله قی (کانګې)کول.

.5په پروتي اويا ډډه وهلو سره ويدېدل.

.6دناروغۍ او يا بلې وجې څخه بې هوښه کېدل.

.7ليونتوب.

.8په لمانځه کې په زوره خندل.

دغسل بیـان

پـوښــتنه :دغټ حکمي نجاست ( حد ث اکبراوجنابت) څخه دبدن پاکولو طریقه څه ډول ده ؟

ځـــواب :بدن دحدث اکبر یا جنابت څګخه په غسل پاکیږي.

پـوښــتنه : غسل څه ته وایي ؟

ځـــواب :ټول بدن مینځلوته وایي ، چې په شریعت کې جلا طریقه لري.

پـوښــتنه :دغسل شرعي طریقه څه ډول ده ؟

ځـــواب :دغسل کولو طریقه داده چې : اول دواړه لاسونه ترمړوندو پورې پریمینځي بیا استنجا وکړي ، اوله بدن څخه حقیقي نجاست لرې کړي ، اودس وکړي بیا پربدن اوبه واچوي ، په لاس یې وموښي ، اوبیا پرې درې واره اوبه تیرې کړي، خوله کنګال اوپوزې ته به هم اوبه اچوي.

پـوښــتنه : په غسل کې څو فرضونه دي ؟

ځـــواب : درې (3)فرضونه دي:

1. خوله منیځل.
2. دپوزې مینځل.
3. ټول بدن مینځل.

پـوښــتنه : په غسل کې څو سنتونه دي ؟

ځـــواب : پنځه (5) ستونه دی:

.1ترمړوندو پورې دواړه لاسه مینځل.

.2استنجا کول، اودبدن پرکوم ځای چې نجاست وي ، هغه لرې کول.

.3دپلیتۍ دلرې کولوپه نیت غسل کول.

.4لومړی اودس کول.

.5دری واره پرتول بدن اوبه تیرول.

پرموزو دمسح کولو بیان

پـوښــتنه : مسح په کوم ډول موزو رواده ؟

ځـــواب :په دری ډوله موزو مسح کول رواده:

اول : دڅرمنې موزې چې تربیدېیو پورې پښې پکې پټې وي.

دویم: هغه وړینې موزې چې دڅرم تلی ولري.

دریم: هغه وړینې اوتارلرونکې موزې چې دومره پنډې او سختې وي چې په پښو شي په دری اویا څلور میله تگ څیري نه شي.

پـوښــتنه : مسح پرموزو کله رواده ؟

ځـــواب :کله چې اودس وکړې یا پښې ومینځې او موزې په پښوکړې ، اویادې د اوداسه دماتیدو په وخت کې په پښووې.

پـوښــتنه :  موزې چې په پښوشي ترڅو ورځو پرې مسح کیږي ؟

ځـــواب :که چیرې سړی په خپل کور اویا استوگنځي کې وي ، نو پوره یوه ورځ اویوه شپه پرې مسح کولای شي اوکه په سفروي نو دری ورځې اودری شپې یې کولای شي.

پـوښــتنه : پرموزو مسح څه ډول کیږي ؟

ځـــواب :په پورته مخ باندې یې کول پکاردي دتلی اویا پوندې په لوري باندې مسح نه کیږي.

پـوښــتنه :په اوداسه اوغسل دواړو کې پرموزو  مسح کیږي  ؟

ځـــواب :په اوداسه کې په موزو مسح کیږي اوپه غسل کې نه کیږي.

پـوښــتنه : مسح بایدڅه ډول وشي ؟

ځـــواب :دلاسو ګوتې په اوبو لندې کړه ،دلاس درې ګوتې دې د پښو پرګوتو کښېږده پورته خواته يې راکش کړه، دلاسو ګوتې پرموزو پوره کښګيږده يواځې دګوتو سرونه ايښودل کافي نه دي.

پـوښــتنه : په څيرې شوې موزه باندې مسح کيږي اوکه نه ؟

ځـــواب :که موزه دومره څيري وي چې دپښو د دريو کوچنيو ګوتو په انداه ترينه پښه ښکاره شي ، اويا دتګ په وخت کې خلاصيږي پدغسې موزه مسح نه کيږي، اوکه له دې کمه څيرې وه بيا مسح پرې کيږي.

پـرپټـۍ (جبـيره) د مسح بيــان

پـوښــتنه : جبيره (پټۍ) څه ته وايي ؟

ځـــواب :جبيره هغه دړې ته وايي چې دمات شوي هډوکي د کوشيرولولپاره ترل کيږي خودلته له جبيرې څخه دړه ،دزخم پټۍ ياد مرهمو پټګۍ اوداسې نورې هرډول چې وي هغه ټولې مراد دي.

پـوښــتنه : پر پټۍ باندې څه وخت مسح کيږي ؟

ځـــواب :که چيرته د پټۍ خلاصول اويا يې لرې کول نقصان ولري اويا په تکليف سره لرې کيږي نو پرهغه دړه او ياپټۍ باندې مسح رواده.

پـوښــتنه : دپټۍ پرکومه برخه باندې مسح کيږي ؟

ځـــواب :پرټوله پټۍ مسح کول پکاردي،که لاندې يې زخم وي اوکه نه وي.

پـوښــتنه : که چيرته د پټۍ خلاصول نقصان اوتکليف نه رسوي ، نو بيايې حکم څه دی ؟

ځـــواب :که چيرې په اوبو سره دزخم مينځل زخم ته ضرر ونه لري نومينځل يې ضروري دی ، اوکه مينځل ورته نقصان رسوي او مسح يې نه رسوي نو بيا پرزخم مسح کول واجب دی، اوکه چېرته مسح هم زخم ته زيان رسوي نو بيا هغه وخت يواځې پرپټۍ باندې مسح کول روادي.

دحقيقي نجاست بيان

پوښتنه : حقیقي نجاست څو ډوله دی ؟

ځواب : دوه ډوله دی:

لومړی : غلیظه نجاست – دوهم : خفیفه نجاست ،

پوښتنه : غلیظه نجاست او خفیفه نجاست څه ته وايي ؟

ځواب :کومه پلیتي چې سخته وي هغه ته غلیظه نجاست وايي اوکومه چې سپکه وي هغه ته خفیفه نجاست وايي.

پوښتنه :غلیظه نجاست کوم شیان دي ؟

ځواب :دانسان وړې او غټې متیازې دحیواناتو ګندګي: اودهغو حیواناتو متیازې چې غوښه یې حرامه وي ، دانسان اوحیوان بهینده وینه، شراب اودچرګانو اوهیلیو ګندګي داټول غلیظه نجاستونه دي.

پوښتنه : خفیفه نجاست کوم شیان دي ؟

ځواب : دهغو حیواناتو متیازې چې غوښه یې خوړل کیږي اودحرامو مرغانو ګندګي هم خفیفه نجاست دی.

پوښتنه :غلیظه نجاست څومره اندازه ښښل کیږي ؟

ځواب :که غلیظه نجاست کلك جسم ولري لکه : غټې متیازې نو هغه د درې نیمو ماشو دوزن په اندازه ښښل کیږي اوکه نری وي لکه : شراب، وړې متیازې نو هغه دانګریزي یوې روپۍ (1) په قدر ښښل کیږي د ښښلو مطلب دادی چې که له دومره اندازه نجاست سره چې پربدن یا کالو باندې لګیدلې وي لمونځ وشي نو لمونځ یې له غاړې ساقط شو ، خو مکروه به وي اوکه چیرته همدومره نجاست ته یې پام وي چې لګیدلی دی نو بیا یې لمونځ ورسره نه کیږي.

پوښتنه:

خفیفه نجاست څومره اندازه ښښل کیږي ؟

ځواب :که دجامې اویاهم د اندام دڅلورمې برخې له اندازې نه لږ کمه پرې پلیته شوې وي ښښل کیږي اوکه نه نه ښښل کیږي.

پوښتنه :دحقیقي نجاست څخه جامه یابدن څه ډول پاکیدلی شي ؟

ځــواب :حقيقي نجاست که غليظه او يا خفيفه وي په جامه اوکه په بدن وي درى واري په اوبو مينځلوسره پاکيږي خو دجامې درى واره نښتيځل هم ضروري دي.

پـوښــتنه :له اوبو څخه پرته په بل شي سره پاکيدلی شي اوکه نه ؟

ځــواب :هوا! کوم شی چې نرى اوبهيدوکی وي لکه سرکه، يادهندوانې اوبه ، په هغو سره هم حقيقي نجاست پاکيږي.

داســتنـجا بيـان

پـوښــتنه :استنجا څه ته وايي ؟

ځــواب :دغټو يا وړو متيازو له کولو وروسته کومه پليتي چې په شرمگاه لگيدلې وي دهغې پاکولوته استنجاء وايي .

پـوښــتنه :له متيازو وروسته داستنجا کولوطريقه څه ډول وي ؟

ځــواب :له متيازو وروسته په پاکه لوټه سره شرمگّاه وچول اوبيا وروسته يې په اوبو سره مينځل پکار دی.

پـوښــتنه :دمتيازو له کولو وروسته داستنجا طريقه څه ډول ده ؟

ځــواب :دمتيازوله کولو وروسته شرمگاه بايد دخاورو په درى يا پنځو لوټو سره پاکه اوصافه کړئْ اوبيايې په اوبو سره ومينځي.

پـوښــتنه :داستنجا حکم څه دی ؟

ځــواب :که چيرته غټې يا وړې بولې له خپل ځای هاخوا او دې خوا تللې نه وي نو استنجا کول مستحب دي اوکه چيرته نجاست يوې خوا بلې خواته تللی وي ، خو دشرعي روپۍ په اندازه ياله هغه څخه کمه وي بيا استنجا کول سنت دي ،اوکه چيرته پليتي له يوه درهم څخه زيات خوره شوي وي نو بيا فرض دي.

پـوښــتنه :په کومو شيانو سره استنجا کول پکاردي ؟

ځــواب :دخاورو په پاکو لوټو او ياکاڼو (تيږو) سره.

پـوښــتنه :په کومو شيانو استنجا مکروه ده ؟

ځــواب :په هډوکی، ليدان، خوشايي اودخوراك په شيانو ،په جامو اوکاغذسره استنجا کول مکروه دي.

پـوښـــتنه :په کوم لاس سره استنجا کول په کارده ؟

ځـــواب :په چپه لاس یې کول په کاردي په ښي لاس سره استنجا کول مکروه دي.

د اوبــو بیــان

پـوښـــتنه :په کومو اوبو اودس رواد ی ؟

ځـــواب :دباران، چینې ، څاه، ویالې، دریاب او ویلي شوې واوررې

یا دړلې په اوبو ، دغټ تالاب یالوی حوض په اوبو په دې وارو اودس اوغسل دواړه روادي.

پـوښـــتنه :په کومو اوبو اودس نه کیږي ؟

ځـــواب :په لاندې اوبو سره اودس نه کیږي :دمیوې او ونو په نښتیځل شویواوبو ، ښورا، هغه اوبه چې رنګ او خوندېې دیو پاك شی د یوځای کیدو له امله بدل او ټینګې شوي وي دغه څېرهغه اوبه چې کمې وي او پلیت شی پکې لویدلی وي ، او یا حیوان پکې مردار شوی وي ، اوهغه اوبه چې اودس یاغسل پرې وشي ، اویادپلیتي اثر پرې غالب وي ، دحرامو حیواناتو څخه پاتې اوبه ، د سونف، ګلاب او یا نورو درملو نه ایستل شوې خوله.

پـوښـــتنه :په کومو اوبو چې اودس اویا غسل شوی وي هغو ته څه وایي ؟

ځـــواب :داسې او بو ته مستعملې اوبه وایي چې په خپله پاکې دي خو اودس او غسل کول پرې نه کیږي.

پـوښـــتنه :دکومو حیواناتو نه پاته اوبه پلیتي وي ؟

ځـــواب :دسپي، خنزیراو ښکاري چارپای نه پاتې اوبه پلیتي دي همدا راز دپشي چې موږك اویا بل حیوان یې په هغه ساعت خوړلی وي که اوبه وڅښي نو پاته اوبه یې پاتې شوني (پس خورده) او پاکې نه دي.

پـوښـــتنه :دکومو حیواناتو پاته شوني اوبه مکروه دی ؟

ځـــواب : دپشۍ نه پاتې اوبه په دې شرط چې سمدستي یې موږ ك خوړلی نه وي ، موږ ك ، شرموښکۍ ، کوڅه ګښتې چرګې، نجاست خوړونکې غوا، مېښې، کارغه، ځرخك، شاهین، اوهمداځیردنورو ټولو حرامو حیواناتو پاته شونې (پسخورده) مکروه ده.

پـوښـــتنه :دکومو حیواناتونه پاته اوبه پاکې وي ؟

ځـــواب :دانسان، اوحلالو حیواناتو پاته اوبه پاکې دي ، لکه : غوا، غوایی، وزه، کوتره، زرکه، آس.

پـوښــتنه :دنجاست په لویدلو سره کومې اوبه پلیتیږي ؟

ځـــواب :له دوه ډوله اوبو پرته نورې ټولې اوبه مرداریږي او هغه دوه ډوله اوبه دادي:

اول : دویالې اودریاب روانې اوبه.

دویم : ډیرې ولاړې اوبه ، لکه : دغټ تالاب یا لوی حوض اوبه.

پـوښــتنه :دډیرو ولاړو اوبو اندازه څومره ده ؟

ځـــواب :کومې ولاړې اوبه چې په نمبري گز(1) سره پنځه نیم گزه اوږدوالی او پنځه نیم گزه پلنوالی ولري هغه ډیرې اوبه بللی شي ، کوم حوض یاتالاب چې همدومره اندازه غټ وي ، غټ حوض اوغټ تالاب بلل کیږي.

پـوښــتنه :لږاوبه دپلیتي له ورلوېگدلو پرته په بل کوم شي مرداریږي.

ځـــواب :که په اوبو کې داسي حیوان ولویږي اومړ شي چې بهیدونکې وینه ولري نو اوبه مرداریږي  لکه : چرگه، کوتره، پشي، موږك.

پـوښــتنه :دلوی تالاب یاحوض اوبه څه وخت مرداریږي ؟

ځـــواب :کله چې په اوبو کې دنجاست خوند، رنگ، او یا بوی ښکاره شي.

پـوښــتنه :هغه کوم حیوانات دي چې په اوبو کې مړه هم شي اوبه نه مرداریږي.

ځـــواب :کوم حیوانات چې په اوبو کې پیداکیږي او هلته اوسیږي لکه : ماهی، چونگښه. اودغه څېر هغه حیوانات چې بهیدونکي وینه نه لري لکه : مچ، میاشی، کرړی ، شرموښکۍ ، میږتون، په اوبوکې ددې شیانو په مرگ  سره اوبه نه مرداریږي.

د څـاه بیـان

پـوښــتنه :په کومو شیانو سره څاه مرداریږي ؟

ځـــواب :کله چې څاه ته غټ اویا سپك نجاست ورسیږي اویا یو داسې حیوان چې بهیدونکي وینه ولري څاه ته ورولویږي او پکې مړشي چې بهیدونکې وینه ولري نو څاه مرداریږي.

پـوښــتنه :که چیرته څاه ته یو حیوان ولویږي ، او ژوندبیرته راوخیږي نو دڅاه اوبه به پاکې وي که ناپاکې ؟

ځـــواب :که یوداسې حیوان وي چې پاتې شونې یې پاکه وي او پربدن یې نجاست هم نه وي که په څاه کې ولویږي او ژوندی راوخیژي نو ترڅو پورې چې یې هلته د دوړو اوغټو بولو په کولو یقین نه وي راغلی څاه به پاکه وي.

پـوښـــتنه :څاه چې پلیته شي دپاکیدلو طریقه یې څه ډول ده ؟

ځـــواب :دڅاه دپاکیدو پنځه طریقې دي:

-: 1کله چې څاه ته پلیتي ولویږي نو دټولو اوبو په راکښلو سره هغه پاکیږي.

-: 2کله چې څاه ته انسان یا خنزیر یا سپی یا اوزه یادوه پشیانې او یاد دوی په اندازه له دوی څخه لوی یو بل حیوان ورولویږي او پکې مړشي نو دڅاه ټولې اوبه راایستل په کارد ي.

-: 3کله چې څاته داسې حیوان ورو لویږي چې بهینده وینه ولري او وپړسیږي او یا وشړیږي نو بیا به دڅاه ټولې اوبه راویستل کیږي که حیوان غټ اویاهم وړوکی وي.

-: 4کله چې کوتره یا چرګه یا پشی یا هم دومره بل لوی حیوان ورو لویږي او هلته مړ شي خو ونه پړسیږي نو څلویښت بوکې (ستله) اوبه راکښل په کاردي.

-: 5که چیرې موږك یا مرغۍ اویاهم همدومره لوی یو بل حیوان څاه ته ولویږي اوهلته مړشي نو بیا به شل بوکې اوبه راکاږي ، دشلو پرځای دیرش اودڅلویښتو په ځای شپیته بوکې راکښل مستحب دي.

پـوښـــتنه :که مړ حیوان څاه ته ولوریږي نوبیا یې حکم څه دی ؟

ځـــواب :دمړه حیوان دورلویدو حکم هم هغه دی کوم چې څاه ته دژوندي حیوان دورلویدو او مړکیدو په هکله بیان شو مثلاً : که مړه اوزه ور ولویږي ، نو ټولې اوبه به راکاږي اوکه مړه پشي ورو لویږي نوڅلویښت یا شپیته ، اوکه مړ موږ ك ورولویږي نوشل یا دیرش بوکې به راکاږي.

پـوښـــتنه :که پړسیدلی اویا شړیدلی حیوان څاه ته ورو لویږي نو حکم یې څه دی ؟

ځـــواب :ټولې اوبه به راکاږي چې څاه ته ژوندی حیوان ور ولویدلی او پړسیدلی وي.

پـوښـــتنه :که له څاه څخه مړ حیوان راوخیژي ، اودامعلومه نه وي چې کله ور لویدلی وْ نو حکم یې څه دی ؟

ځـــواب :کوم وخت چې ولیدل شي له همغه وخت څخه څاه ناپاکه ګڼل کیږي.

پـوښـــتنه :له بوکې یا ستل څخه مرادڅومره غټه بوکه ده ؟

ځـــواب :په څاه چې کومه بوکه وي همغه اعتبار لري.

پـوښــتنه :دڅومره بوکو راویستل چې ضروري وبلل شي نو په یو وار به یې راکاږي اوکه په څو وارو یې هم راویستل روادي ؟

ځـــواب :په ډیرو وارو سره یې هم راکښل روادي مثلاً : که شپیته بوکې راویستل کیږي نو شل سهار شل غرمه اوشل ماسپښین راوباسي نو داهم روادی.

پـوښــتنه :په کومه بوکه او رسۍ چې دمرداري څاه اوبه راویستل کیږي هغه به پاك وي اوکه نه ؟

ځـــواب : کله چې دومره اوبه راویستل شي دڅومره اوبو راویستل چې ضروري وي نو په دې سره بوکه او رسۍ دواړه په خپله پاکیږي پکې.

## دريمه برخه

لومـــړۍ ځـــانـګه

تـعلـيـم الايـمان

داسلامي عــقايـدو زده کړه

بســـــم الله الرحـــــمن الــــــرحـــيم

نحمدالله العلى العظيم ونصلي على رسوله الكريم

تـــوحـــيـــد

پـوښــتـنـه : توحيد څه ته وايي ؟

ځــــــواب : په زړه سره الله تعالى يو ګڼل اوپه ژبه سره دهمدې خبرې اقرار ته، توحيد وايي ؟

پـوښــتـنـه : دالله تعالى يو والي خلکو ته څه ډول معلوم شوى ؟

ځــــــواب : اول:خودانسان عقل (په دي شرط چې عقل روغ وي ) دالله تعالى په شته والي (وجود) او يووالي (وحدانيت) باور لري له همدي امله ده چې په دنيا کې ځومره سترستر عقلمندان، حکيمان او فلسفيان تيرشويدي هغوي ټولو دالله تعالى په وحدانيت (يووالي) اقرارکاوه.

دوهم:داچې دالله تعالى ټولو پيغمبرانوu خلکوته دتوحيد لارښوونه کړي اودايي ويلي چې الله تعالى يو دى، سيال نه لري.

پـوښــتـنـه : ايا په قرآن کريم کې د توحيد ښوونه (تعليم) شوى ؟

ځــــــواب :هو ! په قرآن کريم کې دتوحيد ښوونه په پوره اوښه ډول سره شوې، بلکې نن په دنيا کې يواځې قران کريم داسکتاب دي چې دتوحيدښوونه کوي ، که څه هم په مخکني اسماني کتابونو کې د توحيد ښوونه وه، خو په هغو ټولو کتابونو کې خلکو تحريف (رد وبدل) کړى اودتوحيد خلاف خبري يي ورداخلي کړې، اودالله تعالى راليږلې اسماني ښوونه يي بدلې کړې دهغو دسموالي ،اوددي لپاره چې نور ريښتينى توحيد خپورشي الله تعالى حضرت

محمد e راولیږه اوخپل خاص (ځانګړی) کتاب قران کریم یي پرې نازل کړ اوپه هغه کې يي د سوچه، ریښتیني اوخالص توحید ښوونه کړې.

پـوښــتـنـه : دقران مجید له کومو ایاتو نه توحید ثابتیږي ؟

ځــــواب :ټول قرآن کریم له اوله تر آخره د توحید له لارښوونو ډك دی یو څو ایاتونه يې دادي :

ستاسو معبود یو الله دی دهغه څخه پرته بل معبود نشته هغه خورا لوروونکی اوښه مهربانه دی.

]سوره بقره 163 ایت[

دوهم آیت دادی :

]آل عمران 17 ایت[

الله تعالی شاهد دی چې له ده Y نه پرته بل معبود نشته، ملائکې او دعلم خاوندان هم ددې خبرې ګواهي ورکوي ،هغه انصاف راوستونکی دی له هغه پرته بل معبود نشته هغه زورراود حکمت څښتن دی.

همداراز نور بي شمیر ه ایاتونه دالله تعالی د یووالي ښوونه کوي لکه : ] قل هوالله ډحد[ ( ووایه ای پیغمبره چې الله یو دی) اوداسې نورایتونه.

پـوښــتـنـه : دخدای تعالی ذاتي نوم څه دی ؟

ځــــواب : دخدای تعالی ذاتي نوم الله Yدی چې اسم ذات او ذاتي اسم هم ورته وايي.

پـوښــتـنـه : د الله Y له نامه پرته د خدای تعالی نورو نومونو لکه خالق، رازق، اوداسې نوروته څه وايي ؟

ځــــواب : دالله تعالی دغه ډول نومونو ته صفاتي نومونه وايي.

پـوښــتـنـه : دصفاتي نوم معنا څه ده ؟

ځــــواب :داچېالله تعالی ګڼ صفتونه لري، لکه قدیموالی، (یعني تل تر تله او همیشه پاتې کېدل) ، عالم (په هر شي پوهېدل)، قادر( پرهر شي قدرت لرل)، حیّ (ژوندي کول )، اوداسي نور، کله چې یو صفت له دې صفاتو څخه ښکاره کړي هغه ته صفاتي نوم وايي.

په مثال يې ځان داسي پوه کړيْ چې ديو سړي نوم (جميل) دى او يواځې د ده د ذات د پيژندني لپاره ايښودل شوى دى په دې کې دهيڅ صفت لحاظ نه دى ساتل شوى خو که چيرته ده ليك زده کړى وي اوديني علوم يې لوستلي وي ،قران کريم يې هم يادي کړى وي، ددې صفتونو له امله دى عالم ، محرر اوحافظ هم بلل کيږي، نو جميل دده ذاتي نوم او عالم، محرر، اوحافظ دده صفاتي نومونه دي، ځکه دانومونه ددېني علومودزده کړې اوقران کريم دیادولو دستاينې له لحاظه پرې ايښودل شوي.

همداځېر الله Y خو دخداى تعالى ذاتي نوم يا اسم ذات دى او خالق، قادر، عالم، مالك، او نور يې صفاتي نومونه دي.

پـوښـتـنـه : دالله تعالى ذاتي نوم خوګ يو دى دهغه صفاتي نومونه څو دي ؟

ځـــــواب : په قرآن کريم کې الله تعالى فرمايلي :

الله تعالى لره ګڼ شمير ښه نومونه دي نو تاسو يې په هغو نومو نو سره وبوليْ.

په حديث شريف کي دي:

"ٳن لله تـعالى تسـعى وتسعـين ٳ سـماً، مـائى ٳلا واحـداً". [بـخـاري]

بي شکه دالله تعالى نه نوي (99) يعني يوکم سل نومونه دي.

## مــلائـــکـــې

پـوښـتـنـه : له مقربو ملائکو پرته دنورو ټولو ملائکو مرتبه په خپل منځ کې برابره ده اوکه کمه يا زياته ده ؟

ځـــــواب : څلور مقربې ملائکې چې نومونه يې تاسو دتعليم الاسلام په دوهمه برخه کې ولوستل ترټولو ملائکو غوره دي خو له دوى پرته نورې ملائکې هم شته چې په خپلو منځو کې دکمې اوزياتې مرتبې لرونکې دي داسې چې ځيني يې ډيرې مقربې اوځيني لږ مقربې دي.

پـوښـتـنـه : ملائکې څه کارکوي ؟

ځـــــواب : په ټولو اسمانو اوځمکو کې بې شميره ملائکې پر بيلابيلو کارو بوختې دي لنډه داچې داسمانو اوځمکوټول کارونه الله تعالى ملائکو ته ورله غاړې کړى اوملائکې يې دالله تعالى له حکم سره سم سرته رسوي.

پـوښــتــنـه : دملائکو یوځو کارونه راته بیان کړه ؟

ځـــــواب : حضرت جبرائيلu به دالله تعالی پیغام، احکام اوکتابونه پیغمبرانو ته راوړل او کله نا کله به دانبیاوْ دمرستې لپاره اود الله Y اودرسول e ددښمنانو سره دجنگ لپاره هم رالیږلې شوې ده، دهمدې په وسېگله ،په ځینو وختونو کې دالله تعالی پریاغي (نافرمانه) بندګانو باندي عذاب هم نازل شوی.

حضرت میکائیل u مخلوق ته دروزي رسولو، باران او رولو، اونورو کارونو په برابرولو باندې بوخته ده اوبې شمېره ملائکې یې ترامر لاندي کار کوي ځیني یې پر دریابونو، سندونو، تالابونو او اور باندې مقررې دي ، دوي ټولې دالله تعالی له حکم سره سم کارونه سرته رسوي.

حضرت اسرافیل u به دقیامت په ورځ شپیلۍ وهي ، حضرت عزرائیل u دمخلوق د ارواوو (روح) په اخیستو مقرره ده اوډیرې ملایکې یې  تر امر لاندي کارکوي.

دنیکو بندګانو اروا اخیستونکې  ملائکې جلا اود بدکارو انسانانو جلادي، او له دې پرته دملائکو یو ځو نور کارونه دادي:

-1دهرانسان سره دوه ملائکې وي یوه یې ښه عمل اوبله یې بداعمال لیکي ، دواړوملایکوته "کرام الکاتبین "وایي.

-2  ځیني ملائکې له آفتونو او بلاوْ څخه دانسانانو پر ساتنه مقررې دي دماشومانو، سپین ږیرو، ضعیفانو نه پرته دهغو انسانانو ساتنه هم کوي چې په اړه یې  الله تعالی ورته دساتنې امروکړي.

-3 ځینې ملائکې دانسان له مرګه ورو سته په قبر کې له هغه نه پوښتنې کوي اودهر انسان قبر ته له خښیېدو روسته دپوښتنو لپاره دوه ملائکې راځي یوې ته نکیر او بلې ته منکر وایي.

-4  ځیني ملایکې بیاپه دنیا کې ګرځي اوچیرته چې دالله تعالی ذکر او وعظ کیږي یا قرآن کریم لوستل کیږي هلته حاضریږي اوځومره خلك چې په هغه  مجلس اویادې نیك کار کې اخته وي دالله تعالی په وړاندې  دهغوي په ګډون شاهدي ورکوي؛ په دنیا کې چګي ځومره ملائکې کارونه کوي هغوی سهار اوماښام بدلیږي د سهار دلمانځه په وخت کې دشپې ملایکې اسمانوته خیږي اودورځې ملایکې راکوزیږي بیادمازدیګر له لمانځه وروسته دورځې ملائکې ځي اودشپې کارکوونکې ملایکې راځي.

-5 ځیني ملایکي بیادجنت پر کاروبوختې دي.

-6 ځیني نورې ملایکې بیاددوزخ پرانتظام بوختې دي.

-7 ځینو ملایکو دالله تعالی عرش پورته نیولی دی.

-8 ځیني نورې ملایکې بیا دالله تعالی په عبادت، تسبیح، او پاکي بیانولو کې اخته دي.

پـوښــتـنـه :  داله څه معلومه شوه چګي ملايکې دومره کارونه کوي ؟

ځـــــواب : داټولې خبرې په قران کريم او احاديثوکې راغلي دي.

د خدای تعالی کتابونه

پـوښــتـنـه : داڅرنګه معلومه شوه چې تورات، زبور او انجيل هم اسماني کتابونه دي ؟

ځـــــواب : دقرآن کريم څخه ثابتيږي چې دادري واړه کتابونه اسماني دي د تورات په هکله  الله تعالی فرمايي:

له شکه پرته موږ تورات نازل کړی په هغه کې هدايت او نوردی.

دزبورپه هکله يې فرمايلي: ] وآتينا داودَ زبوراً[ دسورت نساء 163ايت .   موږ داود uته زبور ورکړ.

دانجيل په هکله فرمايي : ]وقفينا بعيسى ابن مريم وآتينه الإنجيل [ (دحديد سورت  27 ايت[ موږ حضرت عيسى بن مريم  uراوليږه اوهغه ته مو انجيل ورکړ.

نو مسلمانانو ته دقران کريم په واسطه دامعلومه شوه چې دا دری سره کتابونه اسماني دي.

پـوښــتـنـه :  که څېري يو څو ك تورات، زبور، انجيل دالله تعالی کتابونه نه بولي نو هغه څرنګه دي ؟

ځـــــواب : هغه کافردی ځکه چې دقران کريم نه داخبره جوته شوې چې دا واړه دالله تعالی کتابونه دي څوك يې چې د الله تعالی کتابونه نه ګڼي هغه دقران کريم ښوولې خبره نه مني اوڅوك چې دقران کريم ښوولې خبره نه مني هغه کافردی.

پـوښــتـنـه :  آيا هغه تورات، زبور، انجيل کوم چې نن د عيسايانوپه لاسوکې دي هغه اصلي اسماني کتابونه دي ؟

ځـــــواب : نه !  ځکه دقران کريم نه داخبره ثابتيږي چې دوی اصلي اسماني کتابونه بدل کړي دي او اوس ددوی په لاس کې چې کوم تورات، زبور اوانجيل دي هغه اصلي اسماني کتابونه نه دي بلکې په هغوکې تحريف (ردوبدل) شوی ، له دې امله بايد په  اوسني وخت کې په دې کتابونو باندي داعقيده ونه ساتل شي چې ګويادا هغه اصلي کتابونه دي.!

پـوښــتـنـه : داڅه ډول معلومه شوه چې پرځينو پيغمبرانو صحيفې هم نازلې شوې دي ؟

ځـــــواب :دقران کريم څخه ثابته ده چې پرځينو پيغمبرانو صحيفې نازلې شوې، دحضرت ابراهيم uدصحيفې يادونه په سورت "الاعلى" کې راغلې.

پـوښـــتـنـه :قران کريم دخدای تعالی کتاب دی اوکه يې کلام دی ؟

ځـــــواب : قران کريم دخدای تعالی کتاب اوهم يې کلام دی په خپله په قران کريم کې ورته کتاب او کلام دواړه ويل شوي دي.

پـوښـــتـنـه :دخدای تعالی په اسماني کتابو (تورات ، زبور، انجيل او قران کريم ) هريوه کې کوم يو کتاب غوره دی ؟

ځـــــواب : قران کريم ترټولو افضل اوغوره دی.

پـوښـــتـنـه : قران کريم په مخکنيو کتابونو څه غوره والی اوځانګړتياوې (خصوصيت)لري ؟

ځـــــواب : ډيرې ځانګړتياوې لري دهغو څخه يې يو څو دادي:

اول ـ داچې دقران کريم يو يو توری او يويو لفظ ساتل شوی په يوه نقطه کې يې هم نه کموالی او نه هم زياتوالی راغلي دی اونه به دقيامت ترورځې پکې راشي، خو په نورو اسماني کتابونو کې خلکو زياتوالی او کموالی راوستی.

دوهم ـ داچې دقران کريم متن عاجزه کونکی (مُعجز) دی په دې معنا چې متن يې دداسې لوړې ادبي درجې دی چې دقران کريم ديو کوچني او وړوکي سورت په څير هم هيڅو ك ددې وس نه لري چې داسې متن جوړ کړي.

دريم ـ داچې قران کريم دوروستني شريعت احکام له ځانه سره راوړي دي ځکه خو يې دمخکنيوکتابونو ډيرحکمونه منسوخ يا له منځه يوړل.

څلورم ـ داچې مخکې کتابونه به په يو وار پوره نازلېدل خوقران کريم ددرويشتو "23" کالو په موده کې د ضرورت په اندازه لږ لږ نازليده اودضرورت په وخت کې دلږ ،لږ نازلېدو له امله يې دخلکو په زړونوکې ځای ونيو اوپه سلګونو اوزرګونو انسانانو دهغه حکمونه ومنل اومسلمانان شول.

پنځم ـ داچې قرانکريم دزرهاوواولکونو مسلمانانو په سينوکې ساتلی اوخوندي پروت دی اوداډول ساتنه درسول کريم e له مبارکې زمانې نه تراوسه پورې په پرلپسې ډول روانه ده او انشاء الله تر قيامته پورې به روانه وي اوپه سېنوکې يې دساتنې له امله تر ننه پورې داسلام دښمنانوته هېڅ وخت هم ددې موکه په لاس ورنه غله ،چې په قران کريم کې څه کموالی يا زياتوالی راولي او يا يې له دنيا نه ورك کړي اونه به ـکه خدای کول ـتر قيامته پوري داسې موکه په لاس ورشي.

شپږم ـ داچې دقرانکريم احکام داسې معتدل (منځ وميانه)دي چې له هر وخت اوهرولس سره سمون لري په دنياکې هيڅ داسې قوم نشته چې هغوی پرقرانکريم باندې دعمل کولو نه بې وسه وي، داځکه چې دقرانکريم احکام دهرې زمانې اوهر قوم سره مناسبت لري ځکه خو دقران کريم له نزول وروسته بل شريعت او يا بل اسمانې کتاب ته اړتيا نشته اودرسول الله e دنبوت ټولې دنيا لپاره عام ګرځول شوی دی.

پيغمبران عليهم السلام

پـوښــتـنـه : دټولو پيغمبرانو شمير اونومونه معلوم نه دي خو ديو څو مشهوره پيغمبرانوu نومونه راته بيان کړه ؟

ځـــــواب : ديوڅو مشهوره پيغمبرانو uنومونه دادي:

حضرت آدم uحضرت شيثu، حضرت ادريسu، حضرت نوحu، حضرت ابراهيم u، حضرت اسماعيلu، حضرت اسحق uحضرت يعقوبu حضرت يوسف u حضرت داوْد uحضرت سليمانu حضرت موسی u حضرت هارونu ، حضرت زکرياu ، حضرت يحيیu ، حضرت الياسu ، حضرت يونسu ، حضرت صالح u، حضرت لوط u، حضرت هود u، حضرت شعيب u، حضرت عيسیu ، حضرت خاتم النبيين محمد. r

پـوښــتـنـه : حضور اکرم e دعربو له کومې قبيلې نه دی ؟

ځـــــواب : حضور e دقريشو له قبيلې نه دی، دعربو په ټولو قبيلو کې دقريشو قبيله تر ټولو زياته دعزت اومرتبې خاونده وه او دقريشو دقبيلې خلك به دعربو په نوروقبيلوکې سرداران ګڼل کيدل، بيا دقريشو دقبيلې يوه څانګه چې دبني هاشم په نامه ياديده او دقريشود قبيلې د نورو څانګو په پرتله ډير زيات دعزت خاوندان وو ،پيغمبر e دهمدې قبيلې څخه وو، ځکه خوپيغمبر r ته هاشمي هم ويل کيږي.

پـوښــتـنـه : هاشم څوك وْ دچااولادې ته بني هاشم ويل کيږي ؟

ځـــــواب : دپيغمبر rدنيکه نوم هاشم دی د پيغمبر rدنسب لړۍ داسې ده : محمد بن عبدالله بن عبدالمطلب بن هاشم بن عبدمناف.

پـوښــتـنـه : دپيغمبر eپه پښت کې له له حضرت ادمu نه وروسته بل پيغمبرهم شته اوکه نه ؟

ځـــــواب : هو ! دی مبارك eدحضرت اسماعيل uله اولادې څخه دی اوحضرت اسماعيل دحضرت ابراهيم u زوی دی، له دوی دواړو نه پرته حضرت نوح u اوحضرت شيث u هم د حضور e دنسب په لړۍ کې راځي.

پـوښــتــنـه : حضرت محمد eدځو کالو په عمر پیغمبر شو ؟

ځـــــواب : دپیغمبر eمبارك عمر څلویښت کاله وْ چې وحې پرې نازله شوه.

پـوښــتــنـه : د وحي مانا څه ده ؟

ځـــــواب :دوحي مانا داده چې خدای تعالی خپل احکام اوخپل کلام پرپیغمبر نازل کړي.

پـوښــتــنـه : پیغمبر eدوحي له نازلېدو وروسته نورڅومره وخت ژوندی وو ؟

ځـــــواب :درويشت كاله ژوندی وْ ،دیارلس كاله یې په مكه معظمه كې او لس 10 كاله یې په مدينه منوره كې تير كړل.

پـوښــتــنـه : مدینې منورې ته دی مبارك eولې تللي وْ ؟

ځـــــواب : کله چې پیغمبرr دمکې معظمې خلکوته دالله تعالی دیووالي ښوونه کو له اوهغوی ته به یې فرمایل چې بت پرستي پرېږدئ اوپریوه الله تعالی ایمان راوړئ ؛نو هغه خلك یې دښمنان وګرځېدل ځکه هغوی دبتانو عبادت کاوه اوهغه یې خدایان ګڼل ،دوی پیغمبر eته ډول ډول تکلیف رسولو هڅې پیل کړي پیغمبر eدهغوی دکېنې اودښمنۍ له امله سخت تکلیفونه ګالل او هغوی ته به یې دتوحید ښوونه کوله اوپه پرلپسې ډول یې دخدای تعالی حکمونه خلکوته رسول خو کله چې دهغوی دښمني له کچې زیاته شوه، اوټولو په یو وار سره دپیغمبر eدوژلو اراده وکړه نوپیغمبر eدالله تعالی په حکم سره خپل ګران وطن (مکه معظمه) پرېښودله اومدينې منورې ته مهاجرشو.

د مدینې منورې خلك چې لا پخوا مسلمانان شوي وْ، دوی مدینې منورې ته دپیغمبر e دراتګ ډېره تلوسه لرله کله چې پیغمبر مدینې منورې ته ورسیده نودهغه ځای مسلمانانو دپیغمبر eاودهغه دملګرو سره مالي اوځاني دواړه ډوله مرستې وکړې.

مدیني منوري ته دپیغمبر eدورتګ دخبر په اوریدو نور مسلمانان هم کوم چې کافرانو ځورول ،په کراره کراره مدیني منورې ته وکوچېدل ، له مکې معظمې نه مدیني منورې ته تګ هجرت بلل کیږي اوهغومسلمانانوته مهاجرین وایي کوموچې خپل کورونه په مکه معظمه کې پرېښودل اومدیني منورې ته مهاجرشول، اودمدینې منورې مسلمانانو ته انصار وایې کومو چې دپیغمبر e اومهاجرینو سره مرسته کړې وه.

پـوښــتــنـه : دنبوت له دعوي نه مخکې عربو دده مبارك e په اړه څه فکر کاوه ؟

ځـــــواب : دنبوت له دعوی دمخه ټولو خلکو دی مبارك eډېر ربښتینی، پاك اوامانت داره شخصیت ګاڼه او " محمد امین" به یې باله، لنډه داچې دی مبارك دهغوی په وړاندې ډېر داعتباروړ او رښتینی انسان وْ ، ټولو خلکو به یې ډېر عزت او احترام کاوه.

پـوښـتـنـه : ددي خبرې دليل څه دی چې حضرت محمد e ترټولو وروستی پيغمبر دی او له ده نه وروسته به بل هيڅ نبي رانه شي ؟

ځــــواب : اول :- داچې په قران مجيد کې الله تعالی ده مبارك ته د" خاتم النبيين"(وروستی پيغمبر)لقب ورکړی مطلب يې دادی چې دی په ټولو پيغمبرانو کې وروستی پيغمبردی.

دويم :- داچې پيغمبرre رمايي دي " اناخاتمُ النّبيين لانبّيَ بعدي " زه وروستی پيغمبر يم له ماوروسته بل پيغمبر نشته.

دريم :- داچې الله تعالی په قران کريم کې فرمايي : ] اليومَ اَکملتُ لکُم دينکم واَتممتُ عليکم نِعمتی ورضيتُ لکمُ الرِسلام ديناً [ دسورت المائده 3 ايت.

"ما له نن روځې نه تاسي ته ددين ټول احکام ورسول اوخپل نعمت مې تاسې ته په بشپړه توګه وسپاره اوستاسې لپاره مې داسلام دين خوښ کړ."

له دې نه دامعلومه شوه چې د پيغمبر rپه وسيله الله تعالی خپل دين بشپړ کړ اواسلام په هرډول بشپړ اومکمل دين وګرځيد ځکه خو دبل پيغمبر راتګ ته حاجت نه شته.

پـوښـتـنـه : ددي خبرې دليل څه دی چې پيغمبر eله نورو ټولو پيغمبرانو u نه درتبې په لحاظ غوره او ستردی ؟

ځــــواب : ترټولو پيغمبرانو uدنبي e غوره والی دقران کريم ديو شميراّياتونو نه معلوميږي، اوپخپله پيغمبر e هم فرمايي :" انا سيّدوُلد اّدم يوم القيمیۀ": دقيامت په ورځ به زه داّدم uداولادونو سرداريم ، او ښکاره خبره ده چې داّدم u په اولاده کې ټول پيغمبران u راځي ، ځکه نو دنبي کريم e له ټولو پيغمبرانو غوره اودهغو سردار وګرځيد.

صـحـابـه کـرامy

پـوښـتـنـه : صحابي چاته وايي ؟

ځــــواب : صحابي هغه چاته وايي چې پيغمبر eيې دايمان په حالت کې ليدلی وي اويا دده مبارك e په مخ کې حاضرشوی وي اوبيادايمان په حا لت کې مومن وفات شوی وي.

پـوښـتـنـه : صحابه y څومره دي ؟

ځــــواب : په زرګونو دي کوم چې دپيغمبر eپه خدمت کې حاضر او په ايمان مشرف شوي دي.

پـوښــتـنـه : ټول صحابه y دمرتبې په لحاظ په په خپل منځ کې سره برابر دي او که کموالۍاوزياتوالی لري ؟

ځــــواب : دصحابه و y مرتبې په خپل منځ کې کمې اوزياتې دي خوواړه له پاتې ټول اُمت نه غوره دي.

پـوښــتـنـه : په صحابه کرامو yکې ترټولو غوره صحابي څوك دي ؟

ځــــواب :په صحابه کراموکې څلورصحابه له ټولو غوره دي:

اول :- حضرت ابوبکرصديق tچې ترټول امت غوره دي.

دوهم :- حضرت عمرفاروق tچې دحضرت ابوبکرصديق tڅخه وروسته بيا ترټول امت غوره دی.

دريم:- حضرت عثمان غنيtکوم چې دحضرت ابوبکرصديق اوحضرت عمرفاروق y نه وروسته بياترټول امت غوره دی.

څلورم :- حضرت علي tکوم چې له حضرت ابوبکر صديقt، حضرت عمرفاروقt، حضرت عثمان tڅخه وروسته ترټول امت غوره دی اوهمدغه څلوربزرګان د دپيغمبر eوروسته دده مبارك خليفه ګان(ځاناستي) دي.

پـوښــتـنـه : دخليفه معناڅه ده ؟

ځــــواب :دنبي eله وفات وروسته ددين يوشخص چې ددين دهغوکارونوپه سرته رسولوکې دده eپه ځاناست(قايم مقام)وي کوم به چې ده e په خپل ژوند کې سرته رسول خليفه بلل کيږي دخليفه معنا ده قايمقام " ځای ناستی" اونائب.

دحضورeله وفات وروسته ټولو مسلمانانو په يو اتفاق سره حضرت ابوبکرصديق tدنبي e قائم مقام وګرځاوه له همدې کبله دی لومړی خليفه دي.

دده مبارك نه وروسته حضرت عمر فاروق tدوهم خليفه شو له هغه وروسته بياحضرت عثمان tدريم خليفه شو له هغه وروسته بياحضرت علي tڅلورم خليفه وګرځيد.

همدې څلورو ته خلفاء اربعه ، خلفاء راشده اوچاريار يعني څلورياران هم وايي.

د خدای تعالی دوستان( اولـيـاء الله)

پـوښــتـنـه : ولي چا ته وايي ؟

ځـــــواب :کوم مسلمان چې دالله تعالی اودپیغمبر eدحکمونو پیروي کوي، ډیر زیات عبادت کوي ، له ګناوو ځان ساتي ، ددنیاله ټولوشیانوزیاته مینه او محبت یې دالله تعالی اودهغه درسول سره وي داسي مسلمان الله تعالی ته نژدې اوپرې ګران وي ،او هغه ته ولي) د خدای Yدوست (وايي.

پـوښـتـنـه : دولي نښانې څه وي ؟

ځـــــواب :دولي نښه اوعلامه داده چې هغه مسلمان ، متقي او پرهیزګار وي ، ډیر زیات عبادت کوي اودالله تعالی اودهغه درسول e محبت اومینه پرې غالبه وي ،ددنیا حرص نه لري اوداّخرت فکرتل ورسره وي.

پـوښـتـنـه : صحابي ته "ولي" ویل کیدای شي ؟

ځـــــواب : هو ! ټول صحابه y ولیان وو ، دپیغمبر e دصحبت له برکته دهغوی په زړو دالله اودهغه درسول مینه غالبه وه، له دنیاسره یې هیڅ مینه نه لرله ، ډیر زیات عبادت به یې کاوه له ګناوو به یې ځانونه ساتل دالله Y اورسول eدحکمونو پیروي به یې تل کوله.

پـوښـتـنـه : آّیاصحابي یاولي دیو پیغمبر درجې ته رسیدای شي ؟

ځـــــواب : هیڅکله نه ! صحابي یاولي چې څومره لوړه درجه ولري بیاهم دهیڅ یو نبي سره برابریدلی نه شي.

پـوښـتـنـه : داسي ولي چې صحابي نه وي دیوصحابي درجې ته رسیدای شي ؟

ځـــــواب : نه ! دصحابي فضیلت ډیر زیات دېله همدې امله هیڅ یو ولي (چې صحابي نه وي) په مرتبه کې له صحابي سره برابر یا له هغه پورته کیدلی نه شي.

پـوښـتـنـه : ځینې کسان دشریعت خلاف کارونه کوي مثلاً : لمونځ نه کوي یا ږیره خریي خو خلك یې بیاهم ولیان ګڼي ، نوداسي خلك ولیان بلل ځرنګ دي ؟

ځـــــواب : بومځ غلط دي ، تل موباید په یاد وي : داسي څوك چې کړه وړه یې دشریعت په خلاف وي هیڅکله ولیان) د خدای Yدوستان (کیدلای نه شي.

پـوښـتـنـه : آّیا داسي ولي هم شته چې شرعي احکام، لکه لمونځ، روژه ورته بښل شوي وي ؟

ځـــــواب : نه ! ترڅو چې انسان ژوند وی ، روغ رمټ وي هیڅ یو عبادت هم ورته بښل کیدی نه شي ، اونه هم ګناه کول ورته روادي ، کوم کسان چې روغ رمټ وي اوبیاهم عبادت نه کوي او دشرع خلاف کارونه کوي ، او بیاوایي چې زمونږ دپاره داکارونه روا دي ، هغه بې دینه دی ، هیڅکله ولي کیدای نه شي.

دمعجزې اوکرامت بیان

پـوښـتـنـه : معجزه څه شي ته وايي ؟

ځـــــواب : الله تعالی دخپلو پیغمبرانوu په لاس کله ناکله دعادت خلاف داسې خبرې ښکاره کوي ، چې ددنیا نور خلك يې له کولو نه عاجزه وي ، ترڅو خلك هغه ووینې اوپوه شي چې داالله تعالی استازی (رسول )، دی داسې خبروته معجزه وايي.

پـوښـتـنـه : پیغمبرانوu څه ډول معجزې ښکاره کړي دي ؟

ځـــــواب : پیغمبرانوuدالله تعالی په حکم سره بې شمیره معجزې ښکاره کړي ، چې يو څومشهورې معجزې يې يادوو:

دحضرت موسی u عصا (لکړه) دمارپه شکل شوه، اودفرعون دساحرانو ماران يې وخوړل.

-: 2دحضرت موسی u په لاس کې به خدای تعالی داسې رڼا پیداکوله چې دلمرله رڼګابه تیزه وه.

-: 3دحضرت موسی uلپاره دنیل دریاب (رودنیل) کې وچې کوڅې جوړې اوله خپلو ملګرو سره یوځاېپردغو لارو تردریاب پورېوت ، خوکله چې دفرعون سره له لښکره په دغو لارو داوښتو په نیت ورګډ شواود دریاب منځته ورسید نو اوبه راړنګې شوې اوفرعون يې له لښکرسره یوځای غرق کړ.

-: 4حضرت عیسی u دالله تعالی په حکم سره مړه را ژوندي کول ، مورزاده ړانده به بیناکول ،دپیس ناروغان به يې جوړول، له خاورو به يې مرغان جوړ اوبیا به يې ژوندي کړل اوپه هواکې به الوتل.

-: 5زموږ درسول الله e ستره معجزه قرآن کریم دی چې : تقریباً دیارلس نیم سوه کاله تیرشوو خو تر ننه پورې دعربي ژبې داسې ستر عالم اوپوهاند (له خپل کوښښ سره سره) بیاهم پیدا نه شو چې دقرآن کریم له ټولو نه دیو کوچني سورت په څېر سورت جوړ کړي اونه به يې هم ترقیامته جوړ کړای شي.

-: 6دوهمه معجزه يې معراج دی.

-: 7دریمه معجزه يې شق القمر (دسپوږمۍ ټوټه کېدل)دی.

-: 8څلورمه معجزه يې داوه چې دپیغمبر eددعاپه برکت سره دیو یا دوو کسانو ډوډۍ به سلهاوو تنو په مړه خېټه خوړله.

له دې پرته دحضور e په سلګونو نورې معجزې هم شته چې په غټو کتابونوکې به يې (که خدای کول) ولولئ.

پـوښــتـنـه :  معراج څه ته وايي ؟

ځـــــواب : دالله تعالی په حکم سره پيغمبر  rدشپې په ويښه پربراق باندې سپور شو ، دمکې معظمې څخه بيت المقدس ته اود هغه ځای څخه بيااووم آسمان ته اوبيا ترکومه ځای پورې چې دالله تعالی خوښه وه هلته ولاړ ، په همدې شپه يې جنت اودوزخ دواړه وليدل او بيا خپل ځای ته بيرته راغی همدې ته معراج وايي.

پـوښــتـنـه :  دشق القمر معنا څه ده  ؟

ځـــــواب :  دشق القمر څخه مطلب دادی يوه شپه کله چې د مکې کفارو پيغمبر eته وويل چې : موږ ته يو معجزه راښکاره کړه ، حضور r سپوږمۍ دوه ټوټې کړله او ټولوخلکو دواړه ټوکړې وليدې، بيادواړه بېرته سره يوځای شوې اوڅه ډول چې وه هماغسې جوړه شوه.

پـوښــتـنـه :  کرامت څه ته وايي ؟

ځـــــواب : الله تعالی دخپلو نيکو بندګانو دعزت زياتولو لپاره کله ناکله دهغوی په لاس دعادت خلاف داسي حيرانوونکي کارونه ښکاروي چې دنورو خلکو په وس پوره نه وي ،داسې کارونوته کرامات وايي ، اود اولياء الله څخه دکراماتو ښکاره کېدل حق دی.

پـوښــتـنـه :  د معجزې  اوکرامت ترمنځ فرق څه دی ؟

ځـــــواب :چاچې دپيغمبري دعوه کړي وي ، اوپه لاس يې دعادت خلاف حيرانوونکی کار ښکاره شي معجزه بلل کيږي ، اوچاچې د پيغمبري دعوه کړي نه وي خو متقی او پرهيزګار وي اودده ټول کړه وړه  دشريعت سره سم وي ، که چيرې له ده څخه داسي کار ښکاره شي نودې ته کرامت وايي  او که دعادت خلاف دغه ډول کاردشرعې خلاف له بې دينه خلکو څخه ښکاره شي استدراج بلل کيږي.

پـوښــتـنـه :أياداولياء الله څخه دکرامتونو ښکاره کېدل ضروري دي؟

ځـــــواب : نه ! داخبره هيڅ ضروري نه ده چې دولي څخه به خامخا کرامت ښکاره کيږي ، ممکنه ده چې يو څوك د الله Yدوست اوولي وي او په ټول عمر کې دهغه څخه هيڅ کرامت ښکاره  نه شي.

پـوښــتـنـه :  دشرعې خلاف له ځينو فقيرانو څخه داسي کارونه ښکاره کيږي کوم يې چې نورخلك نه شي کولای، ددې په اړه څه عقيده په کارده؟

ځـــــواب : دداسي خلکو څخه دکوموکړه وړه چې دشرع خلاف وي که چيرې دغه ډول يوه  خبره ښکاره شي نو پوه شه چې دا سحر يا استدراج دی ، هغه هيڅکله کرامت نه شي کيدلای ، داسې خلك وليان) دخدایYدوستان( بلل او دعادت خلاف ددوی کارونوته  کرامت ويل شيطاني تېروتنه ده.

## دريمه برخه

دوهـــمــه ځـــانـګه

تـعلـيـم الارکان

داسلامي اعمالو زده کړه

بســـم الله الرحـــمن الـــرحـــيم

د اوداسه پاته مسئلې

پـوښــتـنـه : بې اودسه لمونځ کول څرنګه دي ؟

ځـــواب : سخته ګناه ده ! ځينو علماوو خولا دا سي چاته چې په لوی لاس بې اودسه لمونځ کوي کافر ويلی.

پـوښــتـنـه : ددې خبرې دليل څه دی چې اودس دلمانځه لپاره شرط دی ؟

ځـــواب : دقرآّن کريم لاندې آّيت يې دليل دی :

"ای دايمان خاوندانو ! کله چې تاسو د لمانځه اراده وکړئ نو

(لومړی) خپل مخونه اولاسونه ترځنګلو پورې ومينځئ ، اوپرخپلو سرو مسح وکړئ اوتر بيډيو (بجلکو) پورې پښې ومينځئ.

اورسول الله e فرمايي:

"مفتاح الصّلاۀ الطّهور" [ترمـذي] ، دلمانځه کيلي (ياشرط) پاکوالی دی.

داوداسه دفرضونو پاته مسئلې

پـوښــتــنــه :اندامونه باید څومره ومینځل شي ؟

ځــــواب : اوبه پراندام باید دومره واچول شي چې پرې وبهيږي ، يو يا دوه ځاڅکې ترينه هم وڅڅيږي ، همدا دمينځلو کمه اندازه ده ، له دې څخه کمې اندازې ته مينځل نه ويل کيږي داسي چې يو څو ك لاس لوند کړي اوپرمخ يې تير کړي اويا دومره لږ اوبه پرمخ توی کړي چې يواځې يې پرمخ وبهيږي او ونه څڅيږي، نودې ته دمخ مينځل نه شي ويل کيدلای اونه يې هم اودس کيږي.

پـوښــتــنــه : دکومو اندامونو مينځل چې فرض دي ، پرڅو ځله مينځلو سره يې فرض ادکيږي ؟

ځــــواب : يوځل مينځل يې فرض دي، درې وارې مينځل يې سنت دي اوله درى وارو څخه زيات مينځل يې ناروا او مکروه دي.

پـوښــتــنــه : دمخ مينځل دکوم ځای څخه ترکوم ځای پورې فرض دي ؟

ځــــواب :دتندي د ويښتانودشنه کيدو له ځايه نيولې دږيرې دشنه کيدوترځايه پورې ، او ديوه غوږ له نرمۍ نه دبل غوږ ترمۍ تر نرمۍ پورې دټول مخ مينځل فرض دي.

پـوښــتــنــه : دکومو اندامو مينځل چې فرض دي ، په هغو کې که چيرې لږ ځای وچ پاتې شي نو اودس يې کيږ ي اوکه نه ؟

ځــــواب : نه !که ديوه وېښته په اندازه هم وچ ځای پاتې شي اودس نه کيږي.

پـوښــتــنــه : که ديو سړي شپږ ګوتې وي نو دشپږمې ګوتې مينځل پرې فرض دي اوکه نه ؟

ځــــواب : هو ! فرض دي ، همداراز دهرداسې نوي زيات شوي غړي مينځل هم فرض دي کوم چې دبدن په داسې ځای کې پيدا شوی وي چې مينځل يې فرض وي.

پـوښــتــنــه : مسح څه ته وايي ؟

ځــــواب : لاس په اوبولندول اوبيا پرپواندام تيرول مسح بلل کيږي.

پـوښــتــنــه : دسر دمسحې لپاره تازه اوبه اخيستل ضروري دي اوکه په لاس باندې پاته لندوالى يې هم بس دى ؟

ځـــــواب : نوې اوبه اخيستل غوره دي ، خو كه چيرته د لاس مينځلو نه پاته لندوالي باندې مسح وكړي هغه هم كافي ده ، خو ياد مو وي ! چې كله په لوند لاس باندې يوځل مسح وشي بيا پرې بل ځاى نه مسح كيږي، همداراز داهم روا نه ده چې لاس لوند نه وي اوپه بل لانده اندام باندې لوند ، اوبيا پرې مسح وشي.

پـوښـــتـنـه :كه چيرته پرلوڅ سرباندې دباران څاڅكي لوېدلي وي او وچ لاس پرې دمسح په نيت تير شي چې ورسره دباران څاڅكي پرسر خواره شي نودامسح كيږي اوكه نه ؟

ځـــواب : كيږي.

پـوښـــتـنـه : په اوداسه كې دسترګو دننه برخې مينځل فرض دي اوكه نه ؟

ځـــــواب :دسترګو دننه برخې اوهمداڅېر دپوزې اوخولې دننه برخې مينځل فرض نه دي.

پـوښـــتـنـه : داودس له كولو وروسته كه څوك سر وخريي ، يا نوكان پرې كړي نو دسردوهم وارمسح ، يا دنوكانو مينځل ضروري دي ؟

ځـــواب : نـــــه.

پـوښـــتـنـه : كه چيرته د چا لاس له څنګل نه لاندې پرې شوى وي نود هغه لاس مينځل ضروري دي اوكه نه ؟

ځـــــواب : هو ! څنګل او دهغه لاندې دلاس څومره برخه چې پاته وي ميځل يې سره له ټولې څنګل فرض دي.

د اوداسـه د سنتـو نو پا تـه مسئـلې

پـوښـــتـنـه : كه په اوداسه كې نيت ونه شي اودس كيږي اوكه نه ؟

ځـــــواب : كه چيرته په اوداسه كې نيت ونه شي داسې چې : په درياب كې ولويږي، يا باران ته ودريږي او داوداسه پرېولو اندامو يې اوبه تيرې شي نو اودس يې كيږي ، معنا داچې په دې اودس سره لمونځ كول روادي ، خو داوداسه ثواب نه وركول كيږي.

پـوښـــتـنـه : داوداسه نيت څه ډول كيږي ؟

ځـــــواب : دنيت معنا ده: اراده كول ، كله چې څوك اودس كوي نو دا اراده دې وكړي چې دناولتيا دليري كولو، پاكي دحاصلولو اولمانځه دروا كيدلو لپاره اودس كوم ، بس همدغه اراده او فكر داوداسه نيت دی.

پـوښــتــنـه : نيت په ژبه ويل ضرور دي اوكه نه ؟

ځـــــواب : په ژبه سره يې ويل ضروري نه دي ، هو ! كه څوك يې ووايي هيڅ پروا نه لري.

پـوښــتــنـه : ديو اوداسه دپاسه دبل نوی اوداسه نيت څه ډول كيږي ؟

ځـــــواب : يواځې دانيت دې وكړي چې ديوه اوداسه دپاسه بل اودس دفضيلت اوثواب دلاسته راوړلو لپاره كوم.

پـوښــتــنـه : په اوداسه كې پوره بسم الله ويل پكاردي اوكه نه ؟

ځـــــواب : بسم الله پوره ويل يا " بسم الله العلیّ العظيم على دين الرسلام " يا " بسم الله والحمد لله " درى واړه ويل روا دي.

پـوښــتــنـه : مسواك وهل څنګه دي او طريقه يې څه ډول ده ؟

ځـــــواب : مسواك وهل سنت مؤ كد دي ، ډير ثواب او زياتې ګټې لري . مسواك ديوې ترخې ونې يا لرګي نه جوړيږي لكه : د"پيلو" ريښه يا د"نيم لكړې" ونې (1)لرګی چې له لوېشتې اوږد پكارنه دی ، لومړی دې مينځې بيادې وهي او مينځلی دې ببرته ږدي ، اول دې دښي لورې بيادې دچپ لورې غاښونه مسواك كړي ، مسواك بايددرى واري ووهل شي اوهر وارته نوې اوبه رااخيستل پكاردي.

پـوښــتــنـه : غړغړه څرنګه ده ؟

ځـــــواب : په اوداسه اوغسل دواړوكې غړغړه كول سنت دي ، خودروژې په حالت كې يې كول په كار نه دي ، په ښي لاس يې كول ضروري دي.

پـوښــتــنـه : دپوزې دمينځلو طريقه څه ډول ده ؟

ځـــــواب : په ښي لاس پزې ته اوبه واچوه اودسا په وسيله يې پورته كش كړه خو دومره نه، چې دماغ ته ورسيږي ، روژه نيونكي ته په كاردي چې يواځې په لاس سره پزې ته اوبه واچوي او پورته يې كش نه كړي ، خولې اوپوزې دواړوته اوبه اچول سنت مؤ كددي.

پـوښــتــنـه : دږيرې دكومې برخې خلالول سنت دي ؟

ځـــــواب : دږيرې دلاندې اودننه ويښتانو خلالول سنت دي، كوم

ویښتان چې دباندې لورته دمخ له پوستکې سره نښتي وي دهغو مینځل فرض دي.

پـوښــتــنـه : دګوتوخلالول څه ډول پکاردي ؟

ځــــواب : دلاس دګوتو خلالول داسي دي چې دیوه لاس ګوتې دې دبل لاس په ګوتو کې ننباسي او ودې ښوروي، دپښو دګوتو خلال دې دچپه لاس په خچنې ګوته سره وکړي دښۍ پښې دخچنې ګوتې څخه دې پیل اودچپه پښې پرخچنې ګوته دې پاته ورسوي.

پـوښــتــنـه : ټول سر با ید څه ډول مسح شي ؟

ځــــواب : له مسح نه مخکې دواړه لاسونه په اوبو لانده کړه، ورغوی له ګوتو سره یوځای دسر پر دواړو طرفونو باندې دتندي دویښتانو له بېخه ترڅټه پورې کش کړه اوبیایې بیرته راو له، او پام دې وي چې دټول سرپرشاوخوا تیر شي.

پـوښــتــنـه : دغوږونو دمسح لپاره نوې اوبه اخیستل پکاردي اوکه نه؟

ځــــواب : نه ! دسرد مسح لپاره دې چې کومې اوبه رااخیستي وي هغه بس دي ، دغوږونو د دننه برخې مسح د شهادت په ګوته سره پکارده ، اودباندې برخې مسح په بټو ګوتو سره پکارده.

داوداسسه د مستـحبا تـو پـا تـه مسئـلې

پـوښــتــنـه : په اوداسه کې له ښي لورې څخه شروع کول سنت دي که مستحب ؟

ځــــواب : ځینو علماوو سنت اوځینو بیا مستحب بللی دي.

پـوښــتــنـه : دغاړې (ورمېږ)دمسح کولو طریقه څه ډول ده ؟

ځــــواب : دواړه خپړې دشاله خوامخې ته پرورمېږ راکاږل کیږي ، دستوني مسح کول بدعت دی.

پـوښــتــنـه : په اوداسه کې نور آداب کوم دي ؟

ځــــواب : داوداسه آداب ډیر دي ، لکه داچې:

(1دخچنو ګوتو سرونه لندول ، اوبیایې په غوږو ننوېستل.

(2دلمانځه له وخت مخکې اودس کول.

(3د اندامود مينځلو په وخت کې يې په لاس سره موښل.

(4 ګوتمۍ (يا ګوتې)ښورول.

(5دنيايي خبرې نه کول.

(6مخ ته په زوره سره اوبه نه اچول.

(7ډيرې اوبه نه تويول.

(8دهراندام دمينځلو په وخت کې بسم الله ويل.

(9له اوداسه وروسته درود شريف ويل.

(10د اوداسه له بشپړېدو وروسته د شهادت دکلمې اوددې دعا لوستل په کاردي :" اللّهم اجعلني من التّوابين و اجعلني من المتطهرين" : يا الله ! ما له توبه کوونکو اوپاکانو څنې وګرځوه.

(11له اوداسه نه پاته اوبه په ولاړه څښل.

(12له اوداسه وروسته دوه رکعته د "تحيۍ الوضوء" نفلي لمونځ کول.

داوداسه مـاتـوونکـو شيانوپاته مسئلې

پـوښـتـنـه : له بدنه په څومره اندازه پليتي وتلو اوبهېدلو سره اودس ماتيږي ؟

ځــــواب : (له متيازو پرته) هره پليتي چې له بدن څخه ووزي اودداسې ځای په لور وبهيږي چې مينځل يې په اوداسه کې فرض وي اودس پرې ماتيږي که څه هم لږ وبهيږي.

پـوښـتـنـه : سترګه چې کله وينې شي اودننه لور ته وبهيږي ،او وينه يې دباندې را ونه وزي اودس پرې ماتيږي اوکه نه ؟

ځــــواب :نه ماتيږي ! ځکه دسترګې دننه برخې مينځل نه په اوداسه ، اونه هم په غسل کې فرض دي.

پـوښـتـنـه : که چيرته په زخم باندې وينه له ښکاره کېدو وروسته ، ګوته يا ټوکر سره وچه کړای شي بيا راښکاره او وچه کړای شي تردې چې څو وراه داسې وشي آيا په دې سره اودس ماتيږي اوکه نه؟

ځـــــواب : بايد دې ته پام و شي چې که چيرته وچه کړای شوې نه وای نو ايابهېده به او که نه ؟ که چيرې دومره وه چې پرېښودل شوې وای نوبهېده به ، نو بيا اودس ماتيږي اوکه دومره نه وه نو اودس نه ماتيږي.

پـوښــتـنـه : له قې سره چې څه شی ووزي اودس ماتوي ؟

ځـــــواب :که زيړه وينه ، خواړه ،اوبه ډکه خوله قی و کړای شي اودس ماتوي اوکه چيرې يواځې بلغم وي اودس بيا نه ماتيږي.

پـوښــتـنـه : که ځوك لږ لږقی څو واره وکړي اودس ماتيږي اوکه نه ؟

ځـــــواب : که چيرې په يوه وار زړه ډکيدو سره څو واره قی وکړي او ټول دومره ۆ چې يوځای شي ډکه خوله ترې جوړيده نو اودس ماتيږي.

هو! که چيرې په يو وار زړه ډکېدوسره يې لږ قی وکړ اوبيايې دزړه ډکوالی لرې شو دوهم وار يې بيا زړه ډك شواو لږ قی يې نور وکړ نو د دواړو وارو قيونه (کانګې) نه يوځای کيږي او نه هم اودس پرې ماتيږي.

پـوښــتـنـه : که پربدن دانه راختلې وي او دوينې يازوې داغ يې پر کالو ولګيږي نوداکالی به پاك وي اوکه ناپاك ؟

ځـــــواب : که چيرته وينه يازوې د بهېدو وړ نه وي بلکې کالي له هغې سره دلګيدلو له امله داغي شي نو کالي پاك دي خو مينځل يې غوره دي.

پـوښــتـنـه : که چيرته قی په ډکه خو له نه وي نوهغه پليت دی اوکه نه ؟

ځـــــواب :نـــــــه.

پـوښــتـنـه : که ژوره پربدن وموښلي وينه وځښبي اوډکه شي ، يا غوماشې او کرړی سرې په غاښ کړي اودس ماتيږي اوکه نه ؟

ځـــــواب : د ژورې په چيچلو سره اودس ماتيږي ، که څه هم د هغې له لاسه درسېدلې زخم وينه ونه بهيږي ، ځکه ژوره دومره وينه ځښبي چې که چيرته هغه وينه له بدنه وتلې او ددې نس ته تللې نه وای نو خامخا به بهيدلې وای ، غوماشی، کرړی اوسپره که سرې وچيچي اودس پرې نه ماتيږي ځکه هغه دومره لږ وينه ځښبي چې دبهيدو وړ نه وي.

پـوښــتـنـه : په څه ډول خوب سره اودس نه ماتيږي ؟

ځـــــواب : په ولاړه يا له تکيې پرته په ناسته سره خوب يا دلمانځه په يو ډول هيئت سره چې بيده شي اودس نه ماتيږي لکه داچې : په سجده کې ويده شي يا په ناسته ويده شي اودس يې نه ماتيږي.

پـوښـــتــنــه : داسې څوك هم شته چې په خوب سره يې اودس نه ماتيږي ؟

ځــــــواب :هو ! دانبيا وو uاودس په خوب سره نه ماتيږي ، دا د دوی جلاخصوصيت اوځانگړی فضيلت دی.

پـوښـــتــنــه : ايا په لمانځه کې په کړس کړس (قهقه)خندا سره دټولو اودس ماتيږي ؟ اوقهقه خنداڅه ته وايي ؟

ځــــــواب : په کړس کړس (قهقه) خندا په داسې لوړغږ خندلو ته واي چې اوازيې نور څوك واوري.

په لمانځه کې په قهقه (په زوره خندا) سره اودس په لاندې شرطونو سره ماتيږي:

.1خنديدونکی به بالغ وي برابره خبره ده که نر يا ښځه وي ، ځکه د نابالغ په قهقه خنداسره اودس نه ماتيږي .

.2خندايې بايدپه ويښه وي ، او که چيرې په لمانځه کې ويده شو اوپه خوب کې يې په زوره وخندل اودس يې نه ماتيږي.

.3په کوم لمانځه کې يې چې خندلې وي هغه به رکوع او سجده لرونکی وي ځکه خو دجنازې په لمانځه کې په کړس کړس خندا اودس نه ماتيږي.

پـوښـــتــنــه : دبل چاعورت ته په کتو سره اودس ماتيږي ؟

ځــــــواب : نه ! په خپل يا دبل چا په عورت باندې په پام يا له پام پرته چې سترگې ولگيږي اودس پرې نه ماتيږي .

دغسل پاتــه مـسئـلــې

پـوښـــتــنــه : غسل څوډوله دي ؟

ځــــــواب : درې ډوله دي:

-فرض

-2سنت

-3مستحب

پـوښــتـنـه : فرض غسل څو ډوله دی ؟

ځـــــواب :شپږ ډو له دی چې بیان به یې دتعلیم الاسلام په راتلونکې برخه کې راشي.

پـوښــتـنـه : سنت غسلونه څو او کوم کوم دي ؟

ځـــــواب:

1-دجُمعې دلمانځه لپاره.

2-ددواړواخترونودلمانځه لپاره.

3-دحج د احرام لپاره.

4-دوقوف عرفات (دعرفات په میدان کې دولاړې لپاره).

پـوښــتـنـه : مستحب غسلونه څو اوکوم کوم دي ؟

ځـــــواب : مستحب غسلونه ډیردي چې یوڅو یې دادي:

1-دشعبان دمیاشتې دپنځلسمې په شپه غسل کول چې " شب برات " ورته وایي.

2-دعرفې په شپه ( دذی الحجې داتمې نېټې دمازدیگرنه وروسته )د راتلونکې شپې لپاره.

3-لمر اویا سپوږمۍ چې کله تندر ونیسي ، دهغو د لمانځه لپاره.

4-داستسقا دلمانځه لپاره.

5-مکې معظمې یا مدینې منورې ته له داخلیدومخکې.

6-مړي ته دغسل ورکولو نه وروسته.

7-دکافر لپاره تراسلام راوړلو وروسته غسل کول.

پـوښــتـنـه : که غسل ته حاجت پیښ وي ،په دریاب کې غوپه وخوړل شي او یا باران ته ودریږي اوپرټول بدن یې اوبه تیرې شي غسل کیږي اوکه نه ؟

ځـــــواب : هو ! کیږي ، په دې شرط چې په خوله او پزه اوبه ورغړول شي.

پـوښــتـنـه : دغسل په حالت کې قبلې ته مخامخ کیناستل روادي اوکه نه ؟

ځــــواب :  که چيرې دغسل په وخت کې بدن لوڅ وي نو قبلې ته مخامخ کيناستل روانه دي اوکه عورت پټ وي بيا پروانه لري.

پـوښــتــنـه : په بربنډ (لوڅ) حالت کې غسل کول څرنګه دي ؟

ځــــواب : په غسل خانه يا بل داسي ځاىکي،ګ چېرته يې چې په عورت د بل چا سترګې نه لګيږي  بربنډ غسل کول روا دي.

پـوښــتــنـه :  په غسل کې کومې خبرې مکروه دي ؟

ځــــواب:

-1زياتي اوبه تويول.

-2په بربنډ حالت کې خبرې کول.

-3قبلې ته مخامخ کيناستل.

-4دسنت خلاف غسل کول.

پـوښــتــنـه : که يوچا له غسل مخکې اودس کړی نه وي ، نود غسل نه وروسته، دلمانځه لپاره پرې بيا اودس کول ضروري دي اوکه نه ؟

ځــــواب : نه ! له غسل سره  اودس هم وشو ، بيا ورته اړتيا نشته.

پـرمـوزو بانـدې دمسح پاتـه مسئلـې

پـوښــتــنـه :    دمسح موده له څه وخته پيليږي ؟

ځــــواب :  کوم وخت چې اودس مات شي ، له هغه وخته څخه دکوردڅښتن (مقيم)لپاره يوه شپه او ورځ اودمسافر لپاره درې شپې او درې ورځې مسح روا ده ، دمثال په ډول دجُمعې په سهار يې اودس وکړ موزې يې په پښو کړې او د دماسپښين دوخت دختمېدو سره يې اودس مات شو ، نو داسړی که مقيم وي نود شنبې دورځې ترماسپښينه پورې پرموزو مسح کولای شي ، اوکه مسافروي  بيادږدوشنبې تر ماسپښينه پورې په موزو مسح کولای شي.

پـوښــتــنـه :  دموزومسح په کومو شيانو سره ماتيږي ؟

ځـــــواب : په کوموشیانوسره چې اودس ماتیږي، له هغه پرته دمسحې د مودې په ختمېدو ، په موزو کښلو ،اود دریو ګوتو په اندازه دموزې په څېرېکیدو سره هم مسح ماتیږي.

پـوښــتـنـه : که چیرې داوداسه په حالت کې یې موزه وکښله اویایې داوداسه په حالت کې دمسحې موده پوره شوه نو حکم یې څه دی ؟

ځـــــواب : په دې صورت کې یواځې پښې مینځل اوموزې پښو کول کافي دي، پوره اودس کول مستحب دي.

پـوښــتـنـه : که چیرې مسافر په موزوباندې مسح پیل کړه اودیوې ورځې او شپې تر تېرولو وروسته بېرته کورته راغی نو مسح به څه ډول کوي ؟

ځـــــواب : موزې دې وکاږي او له سره دې مسح پیل کړي.

پـوښــتـنـه : که مقیم مسح پیل کړه اوپه سفر روان شونو څه دې وکړي؟

ځـــــواب :که سفرېې دیوې ورځې او شپې له پوره کېدو مخکې پیل کړ نو تردریو ورځو اودریو شپو پورې دې پرموزومسح کوي ، اوکه سفرېې د یوې ورځې او شپې له تیرېدو وروسته پیل کړی وي نو موزې دې وکاږي له سره دې مسح پیل کړي.

پـوښــتـنـه : که چیرې موزه څو ځایه لږ لږڅیرې وه نو حکم یې څه دی ؟

ځـــــواب : که موزه څو ځایه لږ لږ څېرې وه نو ټول څیروالی ته دې پام وکړي که چیرته ددوو ګوتو په اندازه وْ نو بیا مسح نه کیږي اوکه چیرته کم وْ، بیا کیږي اوکه چیرته دواړه موزې څیرې وې او څیروالی یې د دوو ګوتو په اندازه وْ خو دهرې یوې څیروالی له دوو ګوتو کم وْ بیا هم مسح کیږي.

د حقیقي نجاست او د هغه د پاکوالی پاته مسئلې

پـوښــتـنـه :که چیرته دڅرمنې په شیانو لکه موزې ، څپلې، کمربنداویا نوروداسې شیانو پلیتي (نجاست) ولګیږي چې په سترګو ښکاریږي هغه به څه ډول پاکیږي ؟

ځـــــواب : پرځمکه یابل شي باندې په موښلو سره پاکیږي خو شرط یې دادی چې په موښلو سره یې صورت اواثر (رنګ،بوی،خوند) له منځه ولاړ شي.

پـوښـتـنـه : كه چيرته په همدې شيانو باندې متيازې، شراب، اويا داسي بله پليتي ولګيږي نو هغه به څه ډول پاكيږي ؟

ځـــــواب : په اوبو اويا بل بهېدونكي شي سره يې داسې پاك كړی چې اثريې لرې اوبيا يې ومينځئ نو پاك به شي، مانا دا چې له صورت لرونكو ټول نجاستونو څخه پرته نور ټول نجاستونه چې دڅرمنې په شيانو ولګيږي هغه يواځې په مونښلو نه پاكيږي ، بلكې مينځل يې هم ضروري دي.

پـوښـتـنـه : چاقو،چاړه، توره اوداوسپنې يا دسپينو زرو يا مسو المونيمو اوداسي نور شيان چې پليت شي نو له مينځلوپرته پاكيږي كه نه ؟

ځـــــواب :داوسپنې شيان چې زنګ وهلي نه وي او صاف وي، او همداځير دسپينو ،سروزرو ،مسو المونيمو اوپيتلو او.....، دغه څېر هندسي،چيني لوښي ،اودفيل له غاښه او هډوكونه جوړ شوي شيان داټول چې پاك وي، كاږه واږه شوي نه وي كه يې په مو ښلو سره دنجاست اثر له منځه ولاړ نو پاكيږي.

پـوښـتـنـه : دكوږوالى نه مقصد څه دی ؟

ځـــــواب : يعني دهغو په جسم كې بايد داسي كوږوالى نه وي چې له امله يې جسم ټيټ او پاس وي، ځكه په داسې كوږوالي كې له موښلو وروسته هم دنجاست د پاتې كېدو امكان وي.

هو! كه په هغو كې يواځې داغونه وي ،كوږوالى نه وي نوبيا دغه شيان په موښلوسره هم پاكيږي.

پـوښـتـنـه : كه پرځمكه پليتي تويه شي، لكه بولې يا شراب اوداسي نور ،نو څه ډول به پاكيږي ؟

ځـــــواب :ځمكه چې وچه شي اودنجاست اثر (رنګ، بوی، خوند) يې له منځه ولاړ شي بيانوځمكه پاكيږي.

پـوښـتـنـه : كه دكور ، مسجد اوداسي نور ځايو په پخو خښتو يا د سيمنټو په فرش يا ديوال باندې نجاست ولګيږي نو څه ډول پاكيږي ؟

ځـــــواب :داسي خښتي اوډبرې چې په يوه ودانۍ كې لګيدلې وي دنجاست دوچيدو اوداثر له تللو وروسته پخپله پاكيږي.

پـوښـتـنـه : كوم شيان چې د مينځلو په وخت كې يې نښتيځل ممكن نه وي لكه ميسي لوښي يا داواريدو پنډې پنډې توشكې نو دهغو دپاكيدو لاره څه ډول ده ؟

ځـــــواب :داسې شيان چې نښتيځل يې ممكن نه وي ياهم ګګران وي دپاكيدلو طريقه يې داده چې : يو وار ومينځل شي ،بيا پريښودل شي ترڅو يې څاڅكي وڅ شي ، دوهم وار بيا ومينځل شي او بيا پريښودل شي ترڅو يې د اوبو څاڅكي ودريږي ، دريم واربياومينځل شي او و غوړول شي نو به پاك شي، خودمينځلو په وخت كې يې په ځمكه

پورې  څومره موښل ممکن وي هغو مره موښل يې ضروري دي ، تر څويې دنجاست ايستلو په لار کې تروسه وسه کوشش شوي وي.

پـوښــتـنـه : دخاورو لوښي چې پليت  شي نو آيا پاکيږي او که نه ؟

ځـــــواب : دخاورو لوښي هم په مينځلو سره پاکيږي او دپاکيدو طريقه يې هغه ده کومه چې په مخکنۍ پـوښــتـنـه اوځـــــو اب  کې تيره شوه.

پـوښــتـنـه :  پليت شی لکه خوشيايي، چې وسوځول شي او ايرې شې يې، ايرې پاکي دي اوکه نه ؟

ځـــــواب : پليت شی چې وسوځول شي اوايره شي، ايرې يې پاکي دي.

پـوښــتـنـه : په غوړوکې که موگ ږك ولويږي اومړ شي حکم يې څه دی ؟

ځـــــواب : غوړي که يخی (کنګل) وي موږ ك اوورسره دهغه شاوخوا غوړې  لري کړای شي پاته غوړي به پاك شي، اوکه غوړي ويلې (اوبه)  وي بيا به ټول غوړ پليت دي.

پـوښــتـنـه :   پليت شوي غوړي اوتېل څه ډول پاکيږي ؟

ځـــــواب : په پليت شويو غوړو ياتېلو کې دهغو په مقدار اوبه واچوه او جوش ورکړه کله چې اوبه د غوړو اويا تيلو سرته راشي لري يې کړه که درى ځله داسي وکړې نو په دې سره به غوړي اوتيل پاك شي.

داستـنـجـا پاتـه مسئـلـې

پـوښــتـنـه :  استنجا کوم وخت مکروه ده ؟

ځـــــواب:

1– قبلې ته مخامخ يا د شا له خواستنجا کول.

2-په داسي ځای کې استنجا کول  چې داستنجا کوونکي پر عورت ديوچا سترګي لګيږي.

پـوښــتـنـه :  دتش اوياډك اودس په وخت کې کومې خبرې مکروه دی ؟

ځــــواب:

.1قبلې ته مخ یا په شا کښینا نستل.

.2په ولاړه متېازې کول.

.3په تالاب ، ويالې اویا ځاه کې اودس ماتی  کول.

.4دهمدغو واړو په غاړه اودس ماتی  کول.

.5دمسجد له ديوال سره.

.6په هدیره کې.

.7دموږك یا په بل غارکې.

.8د اودس ماتېه وخت کې خبرې کول.

.9په ټيټ ځای کیناستل پورته لورته متېازې کول.

.10دخلکو دناستې پاستې په ځاو لاره کې اودس ماتی.

.11داوداسه او یا غسل کولو په ځای کې.

داوبـو پاتـه مسئـلـې

پـوښــتـنـه : دلمر په گرمگو شویو اوبواودس کیږي اوکه نه ؟

ځــــواب : کیږي خو ښه نه دی.

پـوښــتـنـه :  که داوداس په وخت کې دبدن څخه څاڅکي په لوښي

کې ولویږي ، نو پدې اوبو سره بیا اودس کیږي اوکه نه ؟

ځــــواب : داوداسه په وخت چې له بدن نه چې کومې اوبه لاندې  تویږي  مستعملې(ناولې) اوبه بلل کیږي (که چیرته پربدن باندې حقیقي نجاست نه وي )؛ مستعملې اوبه چې له ناولو اوبوسره گډې شي، حکم یې دادی چې

:ترخوپورې د ناولو اوبو مقدار له ناولو اوبو څخه کم وي ترهغه وخته پرې اودس کيږي، اوکه د ناولواوبو مقدار له پاکو اوبو سره برابر او يا ترينه زيا ت شي نو بيا پرې اودس اوغسل نه کيږي.

پـوښــتـنـه : که له اوبوسره پاك شی ګډ شي لکه : صابون يا زعفران نو اودس پرې کيږي اوکه نه ؟

ځــــواب : له پاکو اوبو سره چې پاك شی ګډ شي او داوبو يو يا دوه صفتونه (رنګ، خوند،بوی)بدل کړي نو بيا هم اودس پرې کيږي خو که دری واړه صفتونه يې بدل شول او اوبه ټينګې شوې نو اودس پرې نه کيږي.

پـوښــتـنـه : که تالاب يا حوض په شرعي ګز سره دوه ګزه پلن اوپنځوس ګزه اوږد وي ، ياڅلور ګزه برداره او پنځويشت ګزه اوږ د ، يا پنځه ګزه پلن او شل ګزه اوږ د وي نو هغه به دجاري (روانو) اوبو حکم لري اوکه نه ؟

ځــــواب : هو ! حکم يې دروانو اوبو دي.

پـوښــتـنـه : که حوض پټ او خوله يې خلاصه وي او له شرعي مقدار څخه يې خوله کمه وي خو لاندې برخه يې ډيره پلنه وي نو حکم به يې د لوی حوض او روانو او بو وي او که نه ؟

ځــــواب :که چيرته حوض لس ګزه اوږداولس(1) پلن وي خو له څلورو لوريو او يا يو يا دوو (2) لورو څخه پټ کړای شوي وي که چت يې له اوبو نه پورته او جلا وي نودا بيا سهي حوض دی او اوبه يې روانو اوبو حکم لري ، اوکه چيرته چت يې له اوبو سره لګيدلی وي نو بيا سهي حوض نه دی ، اود کمو اوبو حکم لري ؛لنډه داچې داوبو هغه برخه اعتبارلري دکومو سر چې لوڅ وي پدي معنا چې له چت سره لګېدلې نه وي نو دهغو لپاره دشرعي مقدار اندازه پکارده.

اوکه چيرته يې لوڅه برخه کمه وي نو لاندينۍ برخه يې چې هرڅو مره پلنه وي اعتبار نه لري.

دڅاه پاته مسئلې

پـوښــتـنـه : که په څاه کې دکوترې يا مرغۍ ګندګي ولويږي نو حکم يې څه دی ؟

ځــــواب :دکوترې او مرغۍ په ګندګۍ اويا داوښ اومېږې په دوو اوڅلورو پچو سره څاه نه مرداريږي.

پـوښــتـنـه : که چيرې کافر څاه ته د بوکې (ډولچې) راکښلو لپاره ورکوز شي اوپه اوبو کې غوټه ووهي نو دڅاداوبو حکم څه دی ؟

ځـــــواب : که چیرته کافر ځاه ته له کوزیدو مخکې ولمبیږي اوپاکې جامې واغوندي اوبیا ورکوز شي نودځاه اوبه پاکې دي  اوکه له کوزیدود مخه ونه لمبیږي اوپه خپلو ناولوجامو کې ور کوزشي نو ځاه پاکه ده خو ټولې اوبه یې راکښل په کاردي ، ځکه چې دکافربدن اوجامې یې زیاتره وخت پلیتي وي.

پـوښــتـنـه :  که چیرته ځاه ځانګړې بوکه ونه لري بلکې خلك یې اوبه په مختلفو ورو او غټو بوکو  راوباسي نو دپاکولولپاره به یې اوبه په کومه بوکه راویستل کیږي ؟

ځـــــواب :کله چې ځاه ځانګړې بوکه ونه لري ، اویا ځاه ډیره غټه او یا ډیره وړه وي نو په داسي حالت کې بیا درمیانه (منځنۍ) بوکه اعتبار لري ، درمیانه سولاغه هغه ده په کومې کې چې په انګریزي  سیر درى نیم سیره اوبه راځي.

یـــادونه:تردي ځایه پورې دتعلیم الاسلام له ددوهمې برخې سره تړلې مسئلې پاى ته ورسېدې له دې وروسته نورې مسئلې پیلږي.

د تیـمــم بیــان

پـوښــتـنـه :  تیمم څه ته وایي ؟

ځـــــواب : په پاکه خاوره یاپه داسي پاك شي سره چې د خاورو حکم ولري له حکمي نجاست څخه دبدن پاکولو ته تیمم وایي.

پـوښــتـنـه : تیمم کله روا دى ؟

ځـــــواب :کله چې اوبه نه وي ، یا داوبو له استعمال څخه ناروغي پیداکیږي اویاهم دناروغي دزیاتوالې اندیښنه وي نوبیا تیمم روادى.

پـوښــتـنـه : داوبو دنشتوالي صورتونه کوم دي ؟

ځـــــواب :داچې اوبه یو میل (یونیم کیلومتر) لرې وي ، یاددښمن له وېرې څخه اوبه راخیستل شوني نه وي داسي چې : دکور دباندې ځاه وي خو اودس کونکی ویریږي چې که له کوره ووځم نو دښمن یا غله به مې ووژني ، یا دځاه له خولې سره یو غټ مار اویازمرى وي ، اویا داچې اوبه ورسره وي خو لږ وي اوله دې ویریږي چې که چیرې په دغو

اوبو اودس وکړم تړی به شم ، اویاخو څاه وي خو بوکه اورسی نه وي ، اویاداچې اوبه هم شته خو سړی ددې توان نه لري چې اوبه په ولاړه روباسي اوبل څو ك هم نه وي،داټول هغه صورتونه دي چې داوبو دنشتوالي حکم لري.

پـوښــتـنـه :دناروغۍ وزیره په کوم وخت کې داعتبار وړ ګرځي ؟

ځــــواب :کله چې دخپلې تجربې له مخې یې په هغې غالب ګومان راشي اویا دیوه لوی اوتکړه حکیم (ډاکټر) دوینا له مخې ورته معلومه شي چې داوبو استعمال یې ناروغه کوي نو بیایې تیمم سهي دی.

پـوښــتـنـه :داوبو دیوه میل دلریوالي مطلب څه دی هیله ده چې په یو څه وضاحت سره یې بیا ن کړئ.

ځــــواب : کله چې انسان په داسي ځای کې وي چې هلته اوبه نه وي ، خو دیو چا په ښوونه او یا یې دخپل اټکل له مخې غالب ګومان پدې راشي چې اوبه یو میل لرې دي نو د اوبو راوړل اوپه هغه اودس کول پرې لازم دي.

خو کله چې کوم ښوونکي هم نه وي او داسي لاره هم نه وي چې له هغه څخه داوبو دشتوالي معلومات وشي ، اویا داوبو دشتوالي معلومات وي خو اوبه یو میل اویاله هغه نه هم ډیرې لرې وي نو بیا د اوبو راوړل ضرور نه دي او تیمم کیږي.

پـوښــتـنـه :په تیمم کې څو فرضونه دي ؟

ځــــواب : درې فرضونه دي:

←:1نیت کول.

← :2دواړه لاسونه (چمبې)په خاورو باندې وهل او پرمخ یې تیرول.

← :3بیا دواړه چمبې پر خاوره وهل اوپردواړوځنګلویې تیرول.

پـوښــتـنـه : دتیمم کولو پوره طریقه راته بیان کړئ ؟

ځــــواب : اول نیت وکړه داسي چې زه د ناپاکي دلیرې کولو او دلمانځه دادا کولو لپاره تیمم کوم بیا دواړه چمبې پر پاکه خاوره ووهه او ویې څنډه که خاورې ډیرې وې نو پوه یې کړه او دواړه لاسونه پرمخ باندې داسي تېرکړه چې هیڅ یوځای پاته نه شي ، که دیوه ویښته په اندازه ځای هم پاتې شي تیمم نه کیږي . دوهم ځل دواړه لاسونه په خاورو ووهه او ویې څنډه اول د چپه لاس څلور ګوتې دراسته لاس دګوتو ترڅوکو لاندې کښیږده او ترڅنګلو پورې یې کش کړه ، نو په دې توګه به دښي لاس په لاندینۍ برخه لاس تېر شي .، بیا دچپه لاس ورغوی دښي لاس په پورته خوا باندې دځنګلو له لورې ترګوتو پورې کش کړه ، اود چپه لاس دبټې ګوتې مخ دښي لاس دبټې ګوتې پرشا تیرکړه . ، بیا همدغسي ښی لاس په چپه لاس تیرکړه ورپسې ګوتې خلال کړه اوکه دې ګوته په ګوتې وه دهغې کښل یا ښورول ضروري دي.

پـوښــتـنـه : داوداسه اوغسل دواړو لپاره تیمم کیږي او که یواځې داوداسه لپاره ؟

ځـــــواب : ددواړو لپاره روا دی.

پـوښــتـنـه : تیمم پرکومو شیانو کیږي ؟

ځـــو اب :پرپاکه خاوره ، ریگ ، تیږه، چینه دخاورې په خام یا پاخه لوښي چې غوړ نه وي ، پر پخه یاخامه خښته ، دخاورې یا خښتو یا تیږو پر ټوټو تیمم کیږي دغه راز دگچو پر دیوال اوپرسره ملتاني خاوره باندې ، او پرپاك گرد باندې هم تیمم کیږي.

پـوښــتـنـه : پرکومو شیانو تیمم کیږي ؟

ځـــــواب :پرلرگي، اوسپنې، سرو زرو، سپینو زرو، میسو ، پیتلو، المونیم، شیشه، سرپو، لیم، غنمو، وربشو، په هرډول غله ، جامو، اېرو پردې ټولو شیانو تیمم نه کیږي ، لنډه داچې هر هغه شی چې په اورکې ویلیږي یا په سوځلو سره ایره کیږي پر هغه باندې تیمم پرې نه کیږي.

پـوښــتـنـه : که داېرو ، گچو یا دخښتو پردیوال باندې گرد نه وي نو تیمم پرې کیږي اوکه نه ؟

ځـــــواب : پرکومو شیانو چې مونږ تیمم روا بللی پرهغو باندې د گرد شتوالی شرط نه دی ، په تیږه ،خښته اودخاورې لوښی که مینځل شوی هم وي تیمم پرې روادی.

پـوښــتـنـه : پرکومو شیانو چې تیمم نه کیږي که چیرته گردپرې پروت وي تیمم پرې روادی اوکه نه ؟

ځـــــواب : هو ! که دومره گردورباندې وْ چې هغه باندې له لاس وهلو سره دوړه پیداکیدله یا پرهغه باندې پاتې شي ، نو بیا تیمم روادی.

پـوښــتـنـه :که چیرې چا دقرآن کریم دویلو او مچو کولو یا مسجد ته دتللو لپاره یا داّذان یا سلام دځو اب په نیت تیمم وکړ ، نو آیا په هغه سره لمونځ کیږي اوکه نه ؟

ځـــــواب : نه کیږي.

پـوښــتـنـه : که یو چا دجنازې دلمانځه یا دسجده تلاوت په نیت تیمم وکړ نو په دغه تیمامه سره لمونځ کیږي او که نه ؟

ځـــــواب :کیږي.

پـوښــتـنـه : داوبو د نشتوالي په صورت کې که یو چا پرتمیامه لمونځ وکړ ، له هغه وروسته بیا اوبه پیداشوې نو دلمانځه حکم څه دی ؟

ځــــواب :لمونځ يې شوی ، او بيا راګرځولو ته يې حاجت نشته ،که څه هم اوبه په وخت کې د ننه او ياهم له وخت نه دباندې ورپيداشوې.

پـوښــتـنـه : تيمم په کومو شيانو سره ماتيږي ؟

ځــــواب :په کوموشيانوسره چې اودس ماتيږي په هغو تيمم هم ماتيږي ،هو ! دغسل تيمم يواځې په حدث اکبر سره ماتيږي خو که چيرې يو چا تيمم داوبو دنيستۍ په خاطر کړی وْ، چې کله اوبه ومومي تيمم يې ماتيږي .اوکه چيرې يې ديوبل عذر له امله کړی يْ لکه مرض او يا داسي نور نو د عذر په ختمېدو سره يې تيمم ماتيږي.

پـوښــتـنـه :که يو چا ديوه وخت دلمانځه لپاره تيمم  وواهه نو دبل وخت لمونځ هم پرې کولای شي اوکه نه ؟

ځــــواب :په يوه تيمامه سره ترڅو چې(په کوم لوی او واړه اودس ماتي) مات نه شي دډيرو وختونو لمونځونه پرې کېدلای شي ، دغه راز دفرض لمانځه لپاره چې کوم تيمم شوی وي په هغه سره فرض ، نفل، لمونځ، دقرآن کريم تلاوت ، دجنازې لمونځ ، سجده سهوه او نور ټول عبادتونه کيږي.

پـوښــتـنـه : دتيمم موده څومره ده ؟

ځــــواب : ترڅو چې اوبه پيداشوې نه وي او يا عذر لري شوی نه وي تيمم روا دی ، که څه هم په دغسې حالت کې کلونه واوړي هيڅ پروا نه لري.

دلـمـانځـه ددوهـم شرط

)دجـامـو دپـاکـوالي بيان(

پـوښــتـنـه :  دجامو له پاکوالي نه مقصد څه دی ؟

ځــــواب :کومې جامې چې دلمونځ کونکی پرتن وي لکه : پرتوګ ، خولۍ، پګړۍ کورتۍ، اوداسي نور ددې ټولو شيانو پاکوالی ضروري دی ، داسي چې له دې ټولونه به په يوه هم غليظه نجاست (لويه پليتي) ديوه درهم له اندازې زياته لګېدلې نه وي او دغه ډېر که خفيفه نجاست وي دجامې څلورمې برخې ته به نه وي رسيدلی اوس که په

جامو غليظه نجاست د يودرهم په اندازه يا له هغه نه کم لګېدلی وي او دغه څېر که خفيفه نجاست وي هغه به دجامې څلورمې برخې ته نه وي رسيدلی ، نو پدغسې جامو کې لمونځ روادی خو مکروه دی.

پـوښـتـنـه : که چيرته دپګړۍ دشملې يوه پيڅکه پليته وه خو لمونځ کونکي هغه خواپرېښودله اونيمايي پګړۍ يې له بلې پيڅکې نه ووهله لمونځ يې کيږي اوکه نه ؟

ځـــــواب : کومه جامه چې دلمونځ کونکي له بدن سره داسي تړلي وي چې دده له ښورېدا سره هغه هم ښورېدله دداسې جامې ټول پاکوالی ضرورده، ځکه خواوس په دې صورت کې چې دلمونځ کونکي له ښورېدا سره پګړۍ ښوريږي لمونځ نه کيږي.

دلـمـانـځـه ددريـم شـرط

( دځـای دپاکـوالـي ) بيـان

پـوښـتـنـه : دځای دپاکوالي مقصد څه دی ؟

ځـــــواب : دلمونځ کوونکي د دواړو پښو ، ځنګنونو، لاسو اوتنديې لګولو دځای پاکوالي ضروري دی.

پـوښـتـنـه : په کوم شي چې لمونځ کولای شي که چېرې يې لاندې لوری پليت وي ،لمونځ پرې کيږي اوکه نه؟

ځـــــواب : که چيرته دلرګي اويا تيږي تخته وي او يا اوارې شوې خښتې وي ياهم دهغو په څير بل يو سخت او پنډ شی وي اودلمانځه مخ يې پاك وي نو بيا لمونځ پرې کيږي، که څه هم هغه بل لورې يې پليت وي ، هيڅ پروا نه لري ، اوکه چيرې پريوه نازکه جامه لمونځ وکړي چې لاندې برخه يې مردار وي، لمونځ نه کيږي.

پـوښـتـنـه : که جامه غبرګه وي پورته لوری يې پاك او لاندې لوری يې پليت وي حکم يې څه دی ؟

ځـــــواب : که دواړه لورې يې سره ګنډلې نه وي او پورتنۍ جامه دومره پنډه وي چې دلاندينۍ جامې دپليتي بوی اورنګ ترينه نه حس کېده، بيا لمونځ کيږي ، اوکه چېرې دواړه سره ګنډلې وې نو د احتياط له مخې دې په داسې جامه لمونځ نه کوي.

پـوښـتـنـه : که چيرته دلمانځه ځای پاك وي خو شا اوخوا يې پليتي وي او بوی يې راځي نو لمونځ کيږي اوکه نه ؟

ځـــــواب :لمونځ کيږي خوپه لوېلاس په داسې ځای کې لمونځ کول ښه نه دي.

دلمانځه د څلورم شرط

( عورت پټولو ) بیان

پوښتنه : دعورت دپټوالي معنا څه ده ؟

ځواب :دنارینه عورت دنامه له غوټۍڅخه ترځنګنو (ګونډو) پورې

دی چې پټول یې پرې په لمانځه کې دننه اوهم دباندې فرض دي.

اوپه ښځو له دوو خپرو او قدمو اومخ پرته د ټول بدن پټول فرض دي خو له لمانځه دباندې هم دوی ته دا روا نه دي چې له نامحرم نارینه سره لوڅ مخ ودریږي.

پوښتنه :که دعورت یوڅه برخه له قصدپرته ښکاره شي حکم یې څه دی ؟

ځواب :که دعورت څلورمه برخه په لمانځه کې دومره وخت لوڅه پاتې شي په څومره وخت کې چې دری واره سبحان ربیّ العظیم ویل کیدلای شي نو لمونځ فاسدیږي ، اوکه ښکاره شي او سمدستي بیرته پټ کړای شي نوبیا لمونځ نه فاسدیږي.

پوښتنه : که یوسړی په تیاره کې لوڅ لغړ لمونځ کوي حکم یې څه دی ؟

ځواب : دجامې دشته والي په صورت کې لمونځ لغړ ( لوڅ ګ) نه کیږي، برابر ه خبره ده که په تیاره اویاهم په رڼاکې وي.

پوښتنه :که چیرې یوڅوك په لوی لاس د عورت څلورمه برخه په لمانځه کې ښکاره کړي، حکم یې څه دی ؟

ځواب :په لوی لاس دعورت دڅلورمې برخې ښکارولوسره لمونځ فاسدیږي.

پوښتنه :که له یوچاسره بیخي جامه نه وي نوبیا به څه کوي ؟

ځواب :که چیرې هیڅ ډول جامه ورسره نه وي نو بیادې په یو بل شي ځان پټ کړي ، دمثال په ډول دونو پاڼې یا ټاټ اوداسې نور ، اوکه یومخ دبدن دپټولو لپاره هیڅ نه وي نوبیادې لمونځ وکړي ، خو په داسې وخت کې به بیا په ناسته لمونځ ، رکوع اوسجده په اشاره سره کول غوره دي.

دلـمـانـځـه دپـنــځـم شــرط

د ( وخـت پیـژنـدلـو ) بیـان

پـوښــتـنـه :دلمانځه لپاره دوخت د شرط کیدو معنا څه ده ؟

ځـــــواب :دلمانځه دادا کولو لپاره دوخت دشرط کېدو معناداده چې کوم یووخت د لمانځه لپاره ټاکل شوی وي ، په همغه وخت باید لمونځ وشي، ځکه چې له وخت دمخه لمونځ ښخي نه کیږي او له وخت وروسته بیا لمونځ کولوته ادا نه وایي بلکې بیابه یې قضایي راګرځوي.

پـوښــتـنـه : په شپه اوورځ کې څو وخته لمونځ فرض دی ؟

ځـــــواب :په شپه ورځ کې پنځه وخته لمونځ فرض دی اوله دې پرته یو لمونځ چې واجب دی هغه وتر دی.

پـوښــتـنـه : فرض ، واجب ، سنت ، نفل هریو څه ته وایي او فرق یې څه دی ؟

ځـــــواب :فرض دې ته وایي چې په قطعي (مضبوط) دلیل سره ثابت وي ، په ثبوت کې یې هیڅ رنګه شك اوشبه نه وي ، دفرضو منکر کافر دی اوله عذره پرته یې پریښونکی فاسق اودعذاب وړ ګڼل کیږي.

واجب دې ته وایي چې په ظني (شکمن) دلیل سره ثابت وي منکر یې کافرنه دی ، هو ! له عذره پرته پریښوونکی یې فاسق او دعذاب وړ ګڼل کیږي.

سنت دې ته وایي چې هغه رسول الله e یا صحابه کرامو کړی وي اویا یې دهغه په کولو امر کړی وي.

نفل هغو کارونو ته وایي چې فضیلت یې له شریعت نه ثابت وي ، په کولو کې یې ثواب وي او په نه کولو کې یې عذاب نه وي .همد ي ته مستحب، مندوب او تطوع هم وایي.

پـوښــتـنـه : فرض څو ډوله دي ؟

ځـــــواب :دوه ډو له دي : فرض عین ، او فرض کفایي ، فرض عین خو دې ته وایي چې اداکول یې په هر مسلمان ضروري وي ، له عذره پرته پریښوونکی یې فاسق اوګناهګار وي ، فرض کفایي دې ته وایي چې د یوه یا دوو کسانو په اداکولو سره د ټولو خلکو غاړه خلاصیږي ، اوکه هیڅ څوك یې ونکړي نو بیاټول ګنهګار دي.

پـوښــتـنـه : سنت څو ډوله دي ؟

ځــــواب :دوه ډو له دي موْکد سنت ، او غیر موْکد سنت ، موْکد سنت دي ته وايي چې هغه رسول الله e تل کړي وي اوياې د هغه په کولو امرکړي وي اوتل يې کړي هم وي پدې معنی چې له عذره پرته يې هیڅکله هم پرایښي نه وي ، له عذره پرته ددغه ډول سنتو پریښولو باندې عادتېدل ډېره ګناه لري.

اوغیر موْکد سنت دې وايي چې هغه حضور e زياتر وخت کړي وي خو کله ناکله یې له عذره پرته پرایښې هم وي ، دداسې سنتو په کولو کې له مستحبو ثواب زيات دی اوپه پریښولو کې یې ګناه نشته او دغه ډول سنتو ته سنن زوائد هم وایي.

پـوښـتـنـه :دحرام، مکروه تحریمي او مکروه تنزيهي هر یومعنا څه ده ؟

ځـــــواب : حرام داسې کارته وایي چې حرمت يې په قطعي دلیل سره ثابت وي ، کونکی یې فاسق او دعذاب وړ بلل کیږي اومنکر يې کافر دی.

مکروه تحریمي داسې کارته وایي چې حرمت يې په ظني دلیل سره ثابت وي ، منکريې کافر نه دی، خو کوونکی یې بیاهم ګناهګار دی دمکروه تنزيهي په کولوکې که څه هم ګناه نشته خو یوډول بد کار دی.

پـوښـتـنـه :مباح څه ته وايي ؟

ځـــــواب : مباح هغه کارته وایي چې په کولو کې يې ثواب اوپه نه کولو کې يې ګناه او عذاب نه وي.

پـوښـتـنـه :دسهار دلمانځه وخت راته بیان کړئ ؟

ځـــــواب :له لمر ختو تقریباً یو نیم ساعت مخکې دختیز لورته د اسمان په څنډو(کنارو)کې سپینوالی (رڼا) ښکاره شي ، هغه سپین والی او يا رڼا دځمکې نه پورته لورته د یوې ستنې په شکل کې لوړیږي چې صبح کاذب ورته وايي دغه رڼا لږوخت وي اوبیا ورکیږي ،له دې وروسته دوهمه رڼا ښکاره کیږي چې دلمرخاته ښي اوچپ لورته غوړيږي، یعنې دآسمان پرڅوله ختیزه کناره باندې وغوړيږي ،پورته لورته اوږده نه خیژې ، همدې ته صبح صادق (سپیده داغ)وايي ، دهمدې صبح صادق له ختو سره سم دسهار وخت پیل کیږي چې ترلمر ختو پورې وي ، کله چې دلمرلږ څرک هم ښکاره شي نو دسهار وخت ختميږي.

پـوښـتـنـه :دسهار (فجر)دلمانځه مستحب وخت کوم دی ؟

ځـــــواب : کله چې رڼايي خوره شي اودومره وخت وي چې له سنتو سره سم په ښه توګه لمونځ اداشي ، اودلمانځه ترماميدو وروسته بیاهم دومره وخت لاپاته وي چې که چیرې په یو وجه سره لمونځ سهي شوی نه وي نو ترلمر ختو مخکې دوهم وار له سنتو سره سم لمونځ وکړل شي ، په داسې وخت کې لمونځ کول غوره دي.

پـوښـتـنـه : دماسپښین (ظهر)دلمانځه وخت راته بیان کړئ ؟

ځـــــواب :دماسپښین دلمانځه وخت دلمردزوال(دسیوري دماتېدو) نه نیولې تردې چې دهرشي سیوری دهماغه شي له اصلي سیوري څخه پرته دوه برابره (چنده) شي ، که له دې کچې څخه سیوری واوښت نوبیادماسپښین وخت تیرشوی دی.

پـوښــتـنـه : دماسپښین دلمانځه مستحب وخت کوم دی ؟

ځـــــواب : په دوبې کې یې دومره ناوخته کول چې دلمر تېزي کمه شي ، په مني ، ژمي او پسرلې کې باید لمونځ په اول وخت کې چې دشیانو سیوری دخپل اوږدوالي په اندازه وي خامخا وکړای شي.

پـوښــتـنـه :دمازدیگر(عصر) دلمانځه وخت کله پیلیږي ؟

ځـــــواب : کله چې دهرشي سیوری له اصلي سیوري څخه پرته دوه برابره شي نود ماسپښین وخت ختمیږي اود مازدیگر وخت شروع کیږي ،او داوخت ترلمر لوېدو پورې وي ، خو کله چې لمرډېرېدو ته نږدې او زیړشي نو بیاهغه وخت دمازدېگرلمونځ مکروه دی ، له دې نه مخکې یې کول پکاردي.

پـوښــتـنـه :دماښام دلمانځه وخت کله پیلیږي ؟

ځـــــواب :د لمر دسترګې له لوېدو سره دماښام وخت پیل اودشفق ترورکېدو پوري وي.

پـوښــتـنـه : شفق څه ته وایي ؟

ځـــــواب :دلمر ترډوبېداوروسته داسمان پرکنارو چې دلمرلوېده خواته کوم سوروالي پیداشي هغه ته شفق احمر وایي ، بیا له دې سوروالي وروسته یو ډول سپین والی پیداکیږي هغه ته شفق ابیض (سپینوالی) وایي ،څه شېبه وروسته داسپینوالی هم ورکیږي او ټول اسمان یو ډول ښکاري ،. دسپین والي له تلو مخکې لا دما ښام وخت پاتې وي.

پـوښــتـنـه : دماښام دلمانځه داداکولو مستحب وخت کوم دی ؟

ځـــــواب :اول وخت یې مستحب دی له عذره پرته دلمانځه ځنډول مکروه (ښه نه)دي.

پـوښــتـنـه :دماخستن دلمانځه وخت کله پیلیږي ؟

ځـــــواب : دسپینوالي له ختمېدوسره سم دماخستن وخت پیلیږي اودسهارترسپیده چاوده (صبح صادق) نه ترلږ مخکې وخته پوري وي.

پـوښــتـنـه : دماخستن دلمانځه مستحب وخت کوم دی ؟

ځـــــواب :دشپې تر دويمې برخې پورې يې مستحب وخت دی ، له دې وروسته ترنيمې شپې پورې يې مباح وخت دی له هغه وروسته بيا مکروه وخت دی.

پـوښــتـنـه : دوتر لمانځه وخت راته بيان کړيْ ؟

ځـــــواب :دوتر لمانځه وخت دماخستن دلمانځه وخت دی ، خو دماخستن له لمانځه مخکې نه کيږي ، بلکې دماخستن له لمانځه وروسته دوترو وخت پيليږي.

پـوښــتـنـه : دوترو مستحب وخت کوم يو دی ؟

ځـــــواب :که چيرته دچگا پرځان باور وي چې دشپې په آخرکې خامخا راپاڅېدلی شم نو دهغه لپاره بيادشپې په آخره برخه کې وترکول مستحب دي ، خو که چيرته يې پر ځان داباور نه وي نوبيا وتر له خوب مخکې کول پکاردي .

دلـمـانـځـه دشـپـږم شــرط

(اسـتــقـبـال قبــلـې) بيـان

پـوښــتـنـه : داستقبال قبلې معنا څه ده ؟

ځــــواب :دقبلې په طرف مخامخ درېدلو ته استقبال قبله وايي.

پـوښــتـنـه :په لمانځه کې مخامخ قبلې ته ددرېدلودشرطوالي معناڅه ده ؟

ځــــواب :دلمونځ کولو په وخت کې لمونځ کونکي ته ضروري ده چې مخ يې دقبلې لورته وي.

پـوښــتـنـه :دمسلمانانو قبله کومه ده ؟

ځــــواب :دمسلمانانو قبله کعبه ده، خانه کعبه دخونې په شکل يوه لويه کوټه او د عربو (سعودي عربستان) په هيواد ، دمکې معظمې په ښار کې ده ، کعبې ته " کعبۍ الله ، بيتُ الله ، بيت الحرام " هم وايي.

پـوښــتـنـه : قبله کوم لورته ده ؟

ځــــواب :په هندوستان ، برما، بنګله ديش ، او ډيرو هيوادونوکې (1) خوقبله دلوديز لورته ده ، ځکه چې داټول هيوادونه دمکې معظمې ختيځ لورته واقع دي.

پـوښــتـنـه : كه چيرته لمانځه په وخت کې دمريض مخ دقبلې لورته نه وي او دښوربېدلووس هم نه لري نو څه به كوي ؟

ځـــــواب :که داسې څوك وي ، چې دمريض مخ قبلې لورته واړوي اوله دغه څخه مريض ته دکوم تکليف رسيدلو ويره هم نه وي ، نو بيا دې مخ قبلې ته واړول شي، اوكه چيرته څوك نه وي ، يا وي خو مريض ته پرې ډيرتکليف رسيده ، نو بيا يې چې کوم لورته مخ وي هغې خواته دې لمونځ وکړي.

دلـمـانـځـه د اووم شــرط

( نـيـت ) بـيــان

پـوښــتـنـه : دنيت كولو معناڅه ده ؟

ځـــــواب :نيت دزړه ارادې ته وايي.

پـوښــتـنـه : په نيت کې دڅه شي اراده کيږي ؟

ځـــــواب :په نيت کې دهغه فرض لمانځه اراده ضروري ده كوم چې اداكيږي مثلاً:كه دسهارلمونځ كوي نواراده دې کوي چې د نن سهار لمونځ كوم، كه قضايي لمونځ وي نو داسې نيت دې وكړي چې دفلاني ورځې دسهار قضايي لمونځ كوم ، اوكه چيرته په امام پسې لمونځ كوي نو بيا هم نيت كول ضروري دي.

پـوښــتـنـه :نيت په ژبه ويل څرنګه دي ؟

ځـــــواب :مستحب دی ، كه په ژبه سره ونه ويل شي نو هيڅ پروا نه لري اوكه يې ووايي نوښه خبره ده.

پـوښــتـنـه :دنفل لمانځه نيت څه ډول کيږي ؟

ځـــــواب :دنفل لمانځه لپاره دومره نيت هم كافي دی چې نفل لمونځ كوم اودسنت لمانځه اوتراويح لپاره هم دومره نيت کافي دی.

داذان بـيــان

پـوښـــتـنـه :داّذان معنا څه ده ؟

ځــــواب :داذان معنا خبرول دي خو په شريعت کې دپنځه وخته لمانځه لپاره په ځانګړو الفاظو سره دلمونځ کونکو خبرولوته اذان وايي ، داّذان توري اولفظونه يې دتعليم الاسلام په لومړی برخه کې تيرشول.

پـوښـــتـنـه : آذان فرض دی که سنت ؟

ځــــواب :آذان سنت دی خوداچې له آذان څخه داسلام يو خاص شان اوبرم ښکاريږي  له دې امله پرې ټينګارراغلی.

پـوښـــتـنـه : آذان دکومو لمونځو لپاره سنت دی ؟

ځــــواب : دپنځو لمونځو اوجُمعي دلمانځه لپاره سنت دی ، له دې پرته دبل هېڅ لمانځه لپاره سنت نه دی.

پـوښـــتـنـه :آذان څه وخت کول پکار دي ؟

ځــــواب :دهرفرض لمانځه په خپل وخت کې کول پکاردي ، اوکه چيرته له وخت دمخه وشي نو دوخت پر راتللو سره بايد دوهم وار بياوشي.

پـوښـــتـنـه :داّذان مستحبه طريقه کومه ده ؟

ځــــواب :په آذان کې اووه (7) شيان مستحب دي:

1.دقبلې لورته مخامخ په ولاړه دريدل.

2.داذان کلمې ورو ورو له تلوار پرته ويل.

3.داذان په وخت کې په غوږ کې دشهادت دواړه ګوتې په غوږو کې ورکول.

4.پرلوړ ځګای باندې آذان کول.

5.په لوړ غږ سره آذان کول.

6.دحیّ علی الصّلاۍ  ويلو په وخت کې ښي لورته اود حيّ علی الفلاح په وخت کې چپ لورته مخ ګرځول.

7.دسهار په آذان کې دحي الفلاح نه وروسته  " الصّلاۍ خير من النّوم " دوه ځله ويل.

پـوښـــتـنـه : اقامت څه ته وايي ؟

ځـــــواب : دفرض لمانځه په وخت کې چې کله خلك دجمعې لپاره رابلل کيږي، داّذان کلمې ويل کيږي،خو دحى على الفلاح نه وروسته دقدقامت الصلاۍ کلمې دوه واره داّذان دنوروکلمو نه زياتې ويل کيږي.

پـوښــتـنـه :اقامت ويل څه حکم لري ؟

ځـــــواب : اقامت ويل دفرض لمنځونو لپاره سنت او دنورو لمنځونو لپاره سنت نه دی.

پـوښــتـنـه : آياآذان اواقامت ويل دنارينه اوښځودواړولپاره سنت دی؟

ځـــــواب :نه ! هغه يواځې دنارينه وو لپاره سنت دی.

پـوښــتـنـه :بې اودسه آذان او اقامت ويل څرنګه دي ؟

ځـــــواب :له اوداسه پرته اذان کول روا دي ، خو عادت ګرځول يې ښه نه دي ، او اقامت له اوداسه پرته مکروه دی.

پـوښــتـنـه :که چيرته څوك يو وخت پخپل کورکې فرض لمونځ کوي نو آذان او اقامت به وايي اوکه نه ؟

ځـــــواب :دکلي دمسجد آذان او اقامت کافي دی ، خو که چيرته يې ووايي نو ښه دی.

پـوښــتـنـه :مسافربه  دسفر په حال کې اذان او اقامت وايي اوکه نه ؟

ځـــــواب :هو ! دسفر په حال کې کله چې له آبادۍ څخه دباندې وي آذان او اقامت دواړه ويل پکاردي . خو که چيرته اذان ونکړي او يواځې اقامت ووايي نو بياهم هيڅ پروا نه لري ، خو ددواړو پريښودل مکروه دي.

پـوښــتـنـه :که آذان يو سړی وکړي او اقامت بل  ووايي نو دا روادي اوکه نه ؟

ځـــــواب :که موْ ذن نه وْ او ياهم وْ خو دد وهم کس په اقامت ويلو سره نه خفه کېده نو بيا روا دی ، او که چيرته دموْذن خوښه نه وي نوبيامکروه دی.

پـوښــتـنـه :ترآذان څومره وروسته اقامت ويل پکاردی ؟

ځـــــواب :دماښام له آذان پرته په نورو ټولو وختوکې دومره وروسته والی پکاردی ترڅو هغه کسان چې  په خوراك ، څښاك ، يا قضاي حاجت او بولو بوخت وي هغوی فارغه او په لمانځه کې ګډون وکړای شي.

پـوښــتـنـه :داّذان او اقامت دواړو ځـواب څه ډول وي اوحکم يې څه دی ؟

ځـــــواب :داّذان او اقامت دواړو اجابت (ځـواب ورکول) مستحب دي، داجابت او ځواب معنادا چې : اوريدونکی هم هغه کلمې ووايي کومې چې موْذن او يا يې مکبر وايي خو حيّ على الصّلاۍ او حيّ على الفلاح چې واوري نو لاحول

ولاقوّیٰ ﺇلا بالله ويل پکارده اود سهار په اّذان کې چې الصّلاۍ خير من النّوم  واوري نو صدّقتَ و بررتَ ويل په کار دي ، او په اقامت کې چې  قدقامتِ الصّلاۍ واوري ﺇقامها الله وﺇدامها ويل پکاردي.

پـوښــتـنـه :له اّذان نه وروسته کومه دعاء ويل پکاردی ؟

ځـــــواب :له اّذان وروسته دې دا دعا ووايي:

ﺇللهمّ ربَ هـذه الـدّعوی التّامی والصّلاۍ القائمی اتِ مـحمدٍ الـوسيلی والـفضيلی وابـعثه مـقاماً مـحموداٍ الـذي وعـدّته ﺇنـك لاتـخلف الـميعاد.

ای خدايه ! ددغې کاملې بلنې او رېدونکي اولمانځه پالونکيه ! محمد eته وسېله (دجنت يوه درجه) ورکړه، اولويي وروبښه ، محمود مقام ته يې ورسوه هغه چې تا ورسه لوز (وعده) کړې په تحقيق سره ته دخپلې وعدې پالونکی يې .

دلـمـانـځـه درکـنـونـو بيـان

پـوښــتـنـه : ارکان څه ته وايي ؟

ځـــــواب : په لمانځه کې  ځيني داسې خبرې شته چې کول يې

فرض دي او ارکان ورته وايي ، ارکان  درکن جمع ده ،اورکن دفرضو په معنا سره راځي.

پـوښــتـنـه :په لمانځه کې دننه څو فرضونه دي ؟

ځـــــواب :شپږ:

لـومړی : تکبير تحريمه يااولی تکبير (الله اکبر).

دوهـم  : قيام (ولاړه).

دريــم  : قرائت (قران کريم ويل ).

څـلورم  : رکوع.

پنـځـم  : دواړه سجدې.

شـپـږم : آخره قعده (یانې دلمانځه په آخرکې دالتحیات په مقدار سره کیناستل) ، خو تکبیر تحریمه شرط دی رکن نه دی.

پـوښــتـنـه : کله چې تکبیرتحریمه شرط دی اورکن نه دی نو بیا ولې دمخکنیو شرطو نوسره یوځای بیان نه کړای شو ؟

ځــــواب :ځرنګه چې دتکبیر تحریمه اودلمانځه دنورو ارکانو ترمنځ کومه فاصله نه شته او لمونځ هم په همدې تکبیر سره پیلیږي ځکه نو دلمانځه دنورو ارکانو سره یوځای دتکبیر تحریمه بیانول راته مناسب ښکاره شول.

## دتکبیـر تـحـریـمـه بـیـان

پـوښــتـنـه : دتکبیرتحریمه نه مقصدڅه دی ؟

ځــــواب :دنیت تړلو په وخت کې چې " الله اکبر" وویل شي په دې سره لمونځ پیلیږي اوخبرې چې لمونځ پرې باطلیږي هغه حرامیږي ، له دې امله ورته تکبیر تحریمه وایي.

پـوښــتـنـه :که دفرض لمانځه له نیت نه وروسته تکبیر تحریمه په کړوپه ملا وویل شي نو لمونځ کیږي اوکه نه ؟

ځــــواب :نه ! ځکه چې دتکبیر تحریمه په وخت کې په فرض او واجب لمنځونو کې چې کله عذر نه وي نیغ درېدل شرط دي.

## دلـمانـځـه دلـومـړي رکـن

## قیـام (درېدلو) بیـان

پـوښــتـنـه : دقیام (درېدلو) څخه مقصد څه دی ؟

ځــــواب :قیام ودرېدا ته وایي ، او دودرېدا څخه مقصد داسي ولاړه ده چې لاسونه ترځنګنو پورې ونه رسیږي.

پـوښــتـنـه :په لمانځه کې درېدل څومره اوپه کوملمنځوکې فرض ده؟

ځــــواب : په فرض اوواجب لمنځو دواړو کې دومره ودرېدافرض ده

، چې دفرض په مقدار سره قرائت وويل شي.

پـوښـتـنـه : که دولاړي طاقت نه وي نو بیا به څه کوي ؟

ځــــواب :که دناروغۍ یادزخم یا ددښمن له وېرې یا دهمداسي یو بل غټ عذر په وجه یو څوك نه شي دریدلی نو په ناسته سره فرض او واجب لمونځ کولای شي.

پـوښـتـنـه : په نفل لمانځه کې دودرېدلو حکم څه دی ؟

ځــــواب :په نفل لمانځه کې ودرېدل فرض نه دی ، له عذره پرته په ناسته سره هم نفل لمونځ کېږي خوله عذره پرته په ناسته سره په نفل لمانځه کې نیمايي ثواب وي.

دلـمـانـځـه ددوهـم رکـن

(قـرائـت) بـیـان

پـوښـتـنـه :دقرائت معنا څه ده ؟

ځــــواب :قرأت دقرآن کریم ویلوته وایي.

پـوښـتـنـه :په لمانځه کې څومره قرآن کریم ویل ضروري دي ؟

ځــــواب :کم ترکمه یوآیت ویل فرض دي اوسورت فاتحه (الحمدلله) ویل واجب دي، دفرضو په لومړیو دوو رکعتو اودوترو ، سنتو اونفلو په ټولورکعتونوکې له سورت فاتحې وروسته بل سورت یا یو لوی آیت او یا هم درې واړه ایتونه ویل واجب دي.

پـوښـتـنـه :آیا دسوره فاتحې ویل په هر رکعت کې واجب دي ؟

ځــــواب : دفرض لمانځه له دریم اوڅلورم رکعت نه پرته په هر لمانځه کې که هغه فرض، واجب ،سنت اویاهم نفل وي، ددې ټولو لمنځونو په هر رکعت کې دسورت فاتحې ویل واجب دي.

پـوښـتـنـه :که چیرته دسړي یو آیت هم یادنه وي نو څه به کوي ؟

ځــــواب :سبحان الله یا الحمد لله دې د قرائت په ځای وایي او پرده باندې ژر ترژره دقرآنکریم زده کړه او یادول فرض دي.

دفرض قرائت په اندازه دقرانکریم یادول پرې فرض اودواجب قرأت په اندازه پرې واجب دی ، اودنه زدکولو په صورت کې به ډېر زیات گناه گاروي.

پـوښــتـنـه : قرآن کریم دکوم وخت په لمنځونو کې په زوره ویل پکاردي ؟

ځــــواب : په امام باندې واجب دي چې دماښام اوماخستن د لمانځه په اولو دوو رکعتو اودسهار، جُمعې او اخترونوپه ټولو رکعتو، او همدراز دروژې په میاشت کې په تراویح او وتروکې په لوړغږ (جهر)سره قرأت ووایي.

پـوښــتـنـه : په کومو لمنځوکې په ټیټ آواز سره قرائت ویل پکاردي ؟

ځــــواب :دماسپښین اومازدیگر په لمانځه کې امام او منفرد ټول ، اوپه وترو کې یواځې منفرد بایدقرائت په ټیټ غږسره ووایي.

پـوښــتـنـه : په لوړغږسره دقرائت ویلو اندازه څومره ده ؟

ځــــواب : کمه درجه یې داده چې ده ته نژدې سړی یې غږ واوري ، اودټیټ غږویلو کمه درجه داده چې خپل اوازیې ترغوږو ورسیږي.

پـوښــتـنـه : په کومو لمنځونوکې چې په لوړغږ قرأت ویل کیږي هغو ته څه وایي ؟

ځــــواب :هغو ته جهري لمنځونه وایي ځکه چې دجهر مانا ده په لوړغږ سره ویل.

پـوښــتـنـه : په کومو لمنځونوکې چې قرأت په ټیټ غږ ویل کیږي هغوته څه ویل کیږي ؟

ځــــواب :هغو ته سري لمنځونه وایي ، ځکه چې د سري مانا‌ده په ټیټ غږ او په کراره ویل.

پـوښــتـنـه : که یوڅوك په ژبه سره دقرائت الفاظ ونه وایي یواځې یې په خیال کې ووایي لمونځ یې کیږي اوکه نه ؟

ځــــواب : نه ! په خیال ځغلولو سره لمونځ نه کیږي ، بلکې په ژبه سره ویل یې ضروري دي.

دلـمـانـځـه د دریـم اوڅـلـورم رکـن

(رکــوع ،سـجــدې) بـیــان

پـوښــتـنـه : درکوع کمه اندازه څومره ده ؟

ځـــــواب : درکوع کمه اندازه داده چې ملاکړوپه او ورغوي ځنګنو ته ورسیږي.

پـوښــتـنـه : درکوع مسنونه طریقه څه ډول ده ؟

ځـــــواب : دومره کړوپیدل چې سراوملادواړه برابرشي څنګلې له تشیونه لرې وي اوځنګنونه باید په دواړو ورغویو ونیول شي.

پـوښــتـنـه : که چیرته دسپین ږیرتوب یاد بل څه له امله ملا دومره کړو په شي چې درکوع شکل ته ورته شي نو بیابه رکوع څه ډول کیږي ؟

ځـــــواب :په سر سره دې اشاره کوي داسې چې یواځې سر لږ ښکته کړي نو رکوع یې کیږي.

پـوښــتـنـه : له سجدې نه مقصد څه دی ؟

ځـــــواب :پرځمکه باندې تندی اینبودلو ته سجده وایي.

پـوښــتـنـه :که څوك یواځې په پزه یاتندې باندې سجده وکړي نو سجده یې کیږي اوکه نه ؟

ځـــــواب :که چیرې دعذر له امله داسې وکړي نو بیا داروادي ، اوکه له عذره پرته یواځګې پرتندې باندې سجده کوي سجده یې کیږي خو داکار مکروه ده ، اوله عذرپرته یواځې پرپزه باندې سجده نه کیږي.

پـوښــتـنـه : په هر رکعت کې یوه سجده فرض ده اوکه دواړه ؟

ځـــــواب :دواړه سجدې فرض دي.

پـوښــتـنـه :که چیرته تندی اوپزه دواړه زخمي وي نو بیا به سجده څه ډول کیږي.

ځـــــواب :دداسې خلکو سجده یواځې دسر په ښورولوهم کیږي.

پـوښــتـنـه : ددواړو سجدو په منځ کې به څومره وخت کښیني ؟

ځـــــواب :له لومړۍ سجدې وروسته دې په ډاډه زړه کښیني اوبیا دې دوهمه سجده وکړي.

پـوښــتـنـه :که چیرته داخترونو یادجُمعې اویاهم په یوه بله ستره غونډه کې دخلکو دزیاتوالي له امله که ځای تنګ وو،د شاتني سرې سجده دمخکني سرې په شاباندې کیږي اوکه نه ؟

ځـــــواب : کیږي.

دلــمــانــځــه دپــنــځــم رکــن

( آخري نـاسـتــې ) بـيــان

پـوښــتــنـه :په اخيره قاعده کې څومره اندازه ناسته فرض ده ؟

ځــــواب :دالتحيات د آخري تورو (عبده ورسوله)تروېلو پورې ناسته فرض ده.

پـوښــتــنـه :اخيره قاعده په کومو لمنځونکې فرض ده ؟

ځــــواب :په ټولو لمنځونکې فرض ده  که هغه فرض ، واجب ، سنت اويا هم نفل وي.

دلـمـانـځـه دواجـبـاتو بيـان

پـوښــتــنـه : دلمانځه واجبات کومو خبروته وايي  ؟

ځــــواب :دلمانځه واجبات هغو خبرو ته وايي چې کول يې  په لمانځه کې ضروري وي ، که چيرته له چا څخه يو واجب په هيره سره پاته شي نو دسجده سهوه په کولو سره يې لمونځ بيرته سهي کېدلى شي ، اوکه په هيره سره ديو واجب له پاته کيدو  وروسته بيا هم سجده سهوه  ونه شي او ياهم په لوى لاس يو واجب پريښودل شي ؛ دلمانځه بياراگرځول واجب دي.

پـوښــتــنـه : دلمانځه واجبات څو دي ؟

ځــــواب :دلمانځه واجبات څوارلس (14) دي:

(1دفرض لمانځه په لومړيو دوو رکعتونو کې قرائت ويل.

(2دفرض لمانځه له دريم اوڅلورم رکعت څخه پرته دهرلمانځه په ټولو رکعتونوکې سورت فاتحه ويل.

(3دفرض لمانځه په اولو دوو رکعتونوکې اودواجبو ، سنتو، اونفل لمنځگونو په ټولو رکعتونوکې له سورت فاتحې نه وروسته يو سورت يا يوغټ آيت اويا درى واړه آيتونه ويل.

4)د سورت نه مخکې فاتحه ویل.

5)دلمانځه دبرخو ( قرأت، رکوع ، سجدې ) او ټولو رکعتونو ترمنځ د ترتیب لحاظ ساتل داسې چې ترپایه پورې په ترتیب سره یوپربل پسې اداشي.

6)قومه کول ، یعني درکوع څخه نیغ ولاړیدل.

7)جلسه ( ددواړو سجدو په منځ کې سمه ناسته کول. )

8)دلمانځه دارکانو تعدیل یعنې چې رکوع، سجده اودلمانځه نور ارکان په ښه ډاډه زړه او ښه توګه سره اداکول .

9)ړومبۍ قعده یانې په درې اوڅلور رکعتي لمونځونوکې له اولو دوو رکعتونو څخه وروسته د تشهد (دالتحیات) په مقدار سره کیناستل.

10)په دواړو قعدوکې تشهد (التحیات) ویل.

11)دامام لپاره دسهار ، ماښام ، ماخستن ، جُمعې، اخترونو، تراویح ، او روژې مبارکه په وتروکې په زوره " په لوړاواز" قرأت ویل.

12)د سلام په لفظ سره له لمانځه څخه وتل.

13)په وتروکې دقنوت لپاره تکبیر اوبیا دعاء قنوت ویل.

14)ددواړو اخترونو په لمنځونوکې زائد تکبیرونه ویل.

دلـمـانـځـه دسنـتـو نو بـیــان

پـوښــتـنـه : دلمانځه سنتونه کومو خبرو ته وایي ؟

ځـــــواب :په لمانځه کې چې دکومو شیانو ترسره کول له پیغمبر e نه

ثابت وي ، خوټینګارپرې دفرضو او واجبو د درجې هومره نه وي راغلی سنت ورته وایي که چیرته یوسنت په هیره سره پاتې شي نو نه لمونځ فاسدیږي اونه سجده سهوه واجبیږي اونه هم ګناه لري ، اوکه په لوی لاس سره پریښودل

شي نوکه څه هم نه  لمونځ پرې فاسديږي اونه دسهوې سجده پرې واجبيږي خو پريښوونکی يې دملامتۍ وړ بلل کيږي.

پـوښــتـنـه : په لمانځه کې څو سنتونه دي ؟

ځـــــواب : په لمانځه کې يو ويشت (21) سنتونه دي:

_1له تکبير تحريمه مخکې دواړه لاسونه غوږو ته وړل.

_2ددواړو لاسو ګوتې پرخپل حال باندې خورې پرېښګوول او قبلې ته يې مخامخ کول.

_3دتکبيرپه وخت کې سرنه ښکته کول.

_4دامام لپاره تکبير تحريمه اوديوه رکن څخه بل رکن ته دتلو په وخت کې دضرورت په اندازه ټول تکبيرونه په لوړغږ سره ويل.

_5دښی لاس ورغوی د چپه لاس پرخپړه دپاسه ايښودل.

_6ثناء ( سبحانك اللهم ) ويل.

_7تعوذ ( اعوذ بالله) ويل.

_8تسميه : بسم الله ويل.

_9دفرض لمانځه په دريم اوڅلورم رکعت کې يواځې د فاتحې ويل.

_10آمين " ويل.                "

_11ثنا ، تعوذ، بسم الله، اوآمين ټول په ټيټ غږ ويل.

_12له سنتو سره سم قرائت ويل ، پدې معنی چې په هر لمانځه کې په څومره اندازه دقرانکريم ويل سنت وي هغومره اندازه يې ويل.

_13په رکوع اوسجده کې دری د ری واره تسبيح ويل.

_14په رکوع کې د سر اوملا برابروالی او دواړه ورغوي پرځنګنو کلك ايښودل  پداسې حال کې چې دلاس ګوتې  خورې  وي.

_15په قومه کې امام لپاره " سَمِعَ اللهُ لمن حمده " او مقتدي لپاره " ربّنا لك الحمد" ويل ، او منفرد لره تسميع او تحميد دواړه ويل.

_16دسجدې پر وخت لومړی دواړه ځنګنونه پرځمکه لګول اوبیا دواړه ورغوي ، بیا پزه اوبیا تندی.

_17په جلسه اوقعده کې چپه پښه در ول او پرې کښیناستل ، اوښی پښه داسې درول چې دګوتو سرونه یې دقبلې لور ته وي ، او دواړه لاسونه پر ورنو ایښوول.

_18په تشهد کې پر " ۀشهد ۀن لاۀله ۀلاالله " باندې دشهادت په ګوته سره اشاره کول.

_19په آخره ناسته (قعده)کې له تشهد وروسته درود ویل.

_20له درود وروسته دعاء ویل.

_21اول ښي ، بیا چپ لورته سلام ګرځول.

دلمانځه د مستحباتوبیان

پـوښــتـنـه : په لمانځه کې څو شیان مستحب دي ؟

ځـــــواب :په لمانځه کې پنځه شیان مستحب دي:

_:1دتکبیرتحریمه په وخت کې له لستونو څخه ددواړو خپړو راایستل.

_:2دمنفردلپاره له درې واره زیات تسبیح ویل.

_:3دولاړې په حال کې دسجدې ځای ، په رکوع کې دپښو خپړو، په جلسه اوقعده کې خپلې سینې، اودسلام په وخت کې خپلو اوږوته کتل

_:4په خپل پوره توان سره ټوخې نه کول.

_:5دارږمې په وخت کې خوله بندول ، اوکه خلاصه هم شي نو دقیام په حال کې یې په ښي لاس سره اوپه نورو حالاتو کې د چپه لاس په خپړه سره بندول.

دلـمـانـځه کولـو پـوره طـریـقـه

کله چې دلمانځه اراده وکړې ، نو لومړی خپل ځان له هرې غټې او وړې ښکاره بې اودسۍ څخه پاك کړه ،پاکې جامې واغونده پرپاکه ځمکه قبلې ته مخامخ داسې ودریږه چې د دواړو پښو په منځ کې دې فاصله دڅلورو ګوتو په اندازه اویا دېته نږدې وي.

کوم لمونځ چې کوې دهغه نیت په زړه کې وکړه ، لکه : دسهار فرض لمونځ خاص خدایه تالره کوم اوکه یې په ژبه سره ووایې نو هم ښه خبره ده ، بیا دواړه لاسونه غوږوته وروړه، دلاس ورغوي اوګوتې قبلې ته مخامخ کړه ، او بټې

ګوتې دغوړو نرمیو ته یوسه په داسې حال کې چې ګوتې دې خورې وي ، اوس نو " الله اکبر " ووایه ، دواړه لاسونه د نامه له غوټۍ لاندې وتړه داسې چې دښی لاس ورغوی باید دچپه لاس پر خپړه باندې راشي ، دبټې او خچنۍ ګوتې نه کړۍ (حلقه) جوړه او چپه لاس پرې ونیسه.

پاته دری ګوتې باید دمړوند له پاسه وي او نظردې باید د سجدې پرځای باندې وي ، لاسونه به دې همداځېر تړلي وي اوپه ټېټ غږ ثناء ووایه بیا تعوذ، بیا تسمیه، او سورت فاتحه ووایه ، کله چې سورت فاتحه خلاصه شوه نو په ټېټ غږ " آمین" ووایه ، بیا یوسورت یا غټ آیت اویا دری کوچني آیاتونه ووایه.

خوکه چیرته په امام پسې ولاړوې؛ نو بیاترثناء وروسته چوپ اوسه اوچې امام څه وایي په چوپه خوله یې واوره تعوذ،تسمیه، سورهْ فاتحه، اوسورت هیڅ شی مه وایه.

قرائت په ډاډه زړه او سهي طریقه سره ووایه چټکتیا پرې مه کوه ، بیا الله اکبر ووایه رکوع ته لاړشه ، ګوتې خورې کړه اوپه ورغوي څنګونونه کلك ونیسه ،اوملا داسې آواره کړه که چیرته داوبو ډکه کاسه پرې کښیښودل شي هغه هم روغه په خپل حال پاته شي سر له ملا سره داسې برابرکړه چې نه لوړ ه اونه ښکته وي.

لاسونه دې باید له تشیونه لرې وي ، پنډۍ باید نیغې کړې ،بیا په رکوع کې دری واري اویاهم پنځه وارې تسبیح ووایه بیاتسمیع ووایه او نیغ ودریږه تحمید هم ووایه ، امام به یواځې تسمیع اومقتدي  به یواځې تحمید وایي ، اومنفرد دې تسمیع او تحمید دواړه ووایي.

بیاتکبیرووایه اوسجدې ته لاړ شه دسجدې پروخت  اول دواړه څنګنونه پرځمکه ولګوه، بیا دواړه لاسونه ، بیا پوزه بیا تندی  اومخ موباید ددواړه لاسونو تر منځ دسجدې پرځای اوبټې ګوتې مودغوږو مخامخ وي ،د لاسو ګوتې دې باید سره نښتې وي ترڅو یې سرونه دقبلې لورته شي ،څنګلې له پښتیو او نس (خېټه) له ورنو اوڅنګلو لرې وي ، اوڅنګلې پرځمکه مه خملوه ، په سجده کې دری یا پنځه واره دسجدې تسبیح ووایه.

دسجدې نه دراپورته کېدو په وخت کې لومړی تندی ، بیا پوزه، بیا لاسونه راجګ کړه ، تکبیر ووایه پورته شه ، اونیغ کښینه ، بیاتکبیر ووایه دوهمه سجده دلومړي هغې په څېروکړه ، بیا تکبیر ووایه اوراپورته شه په راپورته کېدو کې لومړی تندی بیاپوزه، بیاځنګنونه راجګ کړه اودپښوپرپنجو باندې نیغ ودریږه لاسونه وتړه اوبسم الله ، سورت فاتحه او یو سورت ووایه (که په امام پسې ولاړوې نو هیڅ مه وایه هرڅه په چوپه خوله واوره) بیا په همغه ترتیب سره رکوع ،قومه، سجده ، جلسه اودوهمه سجده وکړه.

له دوهمې سجدې نه چې راپورته شوې چپه پښه خملوه پرې کښینه ، ښۍ پښه داسې ودروه چې  دګوتو سرونه یې قبلې ته مخامخ وي، اوس نو دواړه لاسه پر ورنو باندې کښېږده او التحیات ووایه.

کله چې ډشهد ډن لا ډله ډلاالله ته ورسېدې نو د بټې او دمنځنۍ ګوتې نه حلقه جوړه کړه اودشهادت ګوته پر"لاډله"باندې پورته اوپر" ډلا الله" باندې يې ښکته کړه اوګوتې تراّخره پورې همداسې ترلې وساته.

تشهدچې ختم کړې كه چيرته لمونځ دوه ركعته ۇ نودرود شريف ووايه بيادعا ووايه ، لومړى ښې ا و بياچپ لورته سلام وګرځوه ، د سلام ګرځولو په وخت کې لومړ ښې لورته مخ وګرځوه او بياچپ طرف ته هم مخ ورسره وګرځوه.

ښې لورته دسلام ګرځولو په وخت کې دې دښې لوردملائکو اولمونځ کوونکو نيت وکړه او چپه لورته دسلام ګرځولو په وخت کې دې دچپه لور دملائکو او لمونځ کوونکو نيت وکړه ، اوپه کومه خوا کې چې امام وي دهغه لور په سلام ګرځولو کې دامام نيت هم وکړه.

او امام بايد په دواړو سلامونوکې دمقتديانو نيت وکړي.

اوكه چيرته لمونځ درى يا څلور رکعتيه وي نو له تشهد وروسته درود مه وايه ، بلکې تکبير ووايه او ودريږه ، دريم اوڅلورم رکعت که دفرض لمانځه وي دفرضو له ترتيب سره اوكه واجب ياسنت يا نفل لمونځ وي دهغو له ترتيب سره سم يې پوره کړه ، اوسلام وګرځوه ، له سلام وروسته دا دعا ووايه : " ډللـهمّ ډنـت السّلام ومـنك السّلام، تباركت يـا ذالـجلال و الړكـرام"

اى خدايه ! ته سلامتياورکونکى يې، اوسلامتياهم دتاله لورې ده ، ته دبرکت څښتن يې اى دلويې اوشان څښتنه!

"اللـهم ډعنّي على ذكـــرك وشـكرك وحسـن عبادتك" [ابوداود]

اى خدايه ! له ماسره مرسته وکړه ترڅو تاياد (ذکر) کړم ، ستا شکراداکړم، ستاينه اوبندګي دې وکړم.

او دادعا ويل هم مسنون دي " لاډله ډلاالله وحـده لاشـريك لـه ، لـه الـملك ولـه الـحمد ،وهـو على كلّ شئٍ قـدير [ بـخاري- مسـلم ]

له خدايه پرته بل معبود نشته هغه يواځې دى سيال نه لري، پاچاهي اوتمامې ستاينې هغه لره دي، په هرشي قادردى.

اللّـهمّ لامـانع لـما ډعـطيت ولا مـعطى لـما منــعت ولاينـفع ذالــجد منـك الـجد " [ بـخاري – مسـلم ]

اى خدايه ! څه شى چې ته ورکوې هيڅوك يې مخه نه شي نيولى، اوڅه شى چې ورکول نه غواړې هيڅوك يې ورکولاى نه شي، اودمالداره سړي مالداري ستاله عذابه دخلاصون په لار کې هغه ته هيڅ ګټه رسولاى نه شي